د مینې خدایه ستا کلام دې تل ما ته لارښود سي
مین دې کړم راوښیه چې مینه څنګه دود سي
شنه ژبه، مست خیال او هسک قلم دې چې بېرزو کړ
سپرلي دې چې کړم پوه مې کړه چې واورې څنګه رود سي
ملیار

# ټال

## شعري ټولګه

ملیار حکمت الله

۱۳۸۷ لمریز لېږدیز کال

# غزل

زرکې دا ســـتا ښکلو لیمو کې څه اثر پربوتی
چې د زړه باز مې ســـتا په درکې مات وزر پربوتی

وږمې د مړې ځمکې پر ســـر دم د عیسی ورپوکړ
بیا به ژوندۍ سي پرې له پاســه شین نظر پربوتی

ګلونو وځئ له خزو په واورې اور پورې کـــړئ
لاس د سیلۍ نه د کنګل تېره خـــنجر پربوتی

چې هڅوي پېـــښو د پېغلو تـــه د ښتې بوډۍ
د مین زړه خوږلن کې ګـــوره څـــــه هنر پربوتی

وږمې د هیلو کاروان راووست د اوربل سیوري ته
ځکه جبین کې د لیـــــلا نوی اخـــــتر پربوتی

ساقي پام وکـــړه عطر ویـش نه دې چې پاتې نه سو
بېدیا د مینې کې غاټـــول ســوی ځیګر پربوتی

ښـــــامار د تورو نه ګوهـــــر د غزل ځکه باسي
چې د قلم اوده کې ســــوز د ســـــره ټټر پربوتی

آخر به ستا خواره اوربل کې ټيک د لمر وټومبي
ثاروان د روڼ کاروان په غاړه د ګودر پرېوتی

سکور سوی زړه به مې د ستورو په مالت کې منې
د بلال رنګ ګوره د حورو پر بشر پرېوتی

د احساس غوټه مې خلاصيږي بس د نور په ګوتو
رازمن زړګی مې د غزل ټال کې د لمر پرېوتی

ئولۍ د پرښو لپه، لپه باران لا تازه کړ
ملياره ستا دلاس په اور کې ثه شرر پرېوتی

(د وري پنئمه ۱۳۷۷المريز کال)



# غزل

بستر کې د اور رغـــــــړم څو مې تن په پخېدو سي
د مینې ســـور انګار سم ګوندې یار په سوځېدو سي

د اوښـــــــکو څاڅکي اړوم په ټال کې د سکروټو
ســــــینه په تیغ د وخت کاږم چې لمر په راختو سي

ریبار د ژبې ولـــــــړم خوږو خوږو ســــــوالو کې
د هیلو ګل ډالۍ کـــــــړم څـــو جوګه د قبلېدو سي

چې څـــــنګه تږې سترګې مې ورپرېوځي په لېمو یې
د شـــــرم سورکۍ وریځ یې را خوره پـــــه اننګو سي

ورو الوزي نسیم د ســـــــویو سویو اســـــــویلو مې
غوټۍ د ســـورکو شونډو یې ورو ورو په رپېدو سي

د خــــــــولې بلبل سي تږی له نارو نه لاس په سر سي
د زړه مـــــــــرغه چونۍ کې د ګوګل په پرېدو سي

مـــــحراب د وریځو وتږي تکل چې د سجدې کـــړم
ارمـــــان د پستو شونډو د زړه تل کې په سلګو سي

زه ډوب د حسن سین کې هغه سره سپینه له شرمه
خبر نه چې شېبې د خوږ دیدن په تېرېدو سي

چې سم تندې وهلې شوندې ورسیږي جام ته
آذان سي پېشلمی د روژتي په ختمېدو سي

مالت ته د دیدن تږی راغلی تږی دروم
شمېرم به د وخت ګوتې ځو شېبې د بیا لیدو سي

( د غوايي ځلورمه نېټه ۱۳۷۷المریز کال)



# د نور څڅې

غسل د باران ته د غـــــزل ناوې بربـــنډه ســـــوه
تود بازار د مينې سو حيا ترېنه په څـــنډه ســـــوه

بيا دورې د عـــطرو د ورېمې پــــه لاس کې ولوېدې
نقد يې ځای ونيوه سپـــلۍ ترينه په منـډه ســـــوه

دا د چـــــــا د سوي زړه خوړلن دی په بيد ياوو کې
زيری د چـــــــا راغی د غمجنې خلاصه ټنډه سوه

دم د کوم عيسا کفن د سپينې واورې وڅـــــــيره
تېره چې وروستۍ سلګۍ د مرګ له پراته خنډه سوه

لـــــمر په ډېره مينه پر غريب څڅې د نـــور کاږي
لښته د سيلۍ يې لوڅو ډډو ځنې لــــــنډه سوه

ښـــــــکاري تر پالنګه يې رسېدلی د مليار قدم
زوکړه د ګل لـــــرې نه ده ځمکه ګـــوره ټنډه سوه

(د ورې دېرشمه نېټه ۱۳۷۷ لمريز کال)

# نه ماتېدونکی

ستا د زلفو کړلیچو کې خوځند یون به مې مات نه سي
سرکې ستا د کوچۍ مینې پروت جنون به مې مات نه سي

د زړګي پر سر به ماته د سرو شونډو پیمانه کړم
سوی ستونی به پرې لوند کړم هوډ پښتون به مې مات نه سي

څو ګربت د ارمان کاږي د یاغي احساس وزرونه
د سپوږمۍ د ښار په لورې الوتون به مې مات نه سي

ږدم د ستورو سپین خالونه د تیارې په توره ټنډه
روڼ خیال، ځلانده لاره، پاک مضمون به مې مات نه سي

وخته وسولوه ګوتې څو کوی سې رژوه مې
په توده غېږ یې پر بوځم شین پرون به مې مات نه سي

پو کوه د باد شپیلۍ دې ریږدوه تش منځي دروي
زه د لوړې سروې ډډ یم ټینګ سکون به مې مات نه سي

که ته حوره د جنت سې زه به تور رنګ د بلال سم
ستا د سپین جبین په لورې پورته تلون به مې مات نه سي

ما دې لار کې غـــــورځولی پاس پر ســـر يې پښه رسا ږده
چېرته جوړ لـــــه ښيښې نه دی زړه مفتون به مې مات نه سي

زه مـــوجود صنم مې رنګ دی زه درياب نګار مې څنګ دی
کـــــه دنيا رقيب، رقيب سي کلک ترون به مې مات نه سي

(د غوايي نولسمه نېټه ۱۳۷۷ لمريز کال)



# متګور

ډېرې د زوزو په لـــــــــېمو اړوو
پـــــه تړق د خـــوله غړپ د ترخو اړوو

دارو د زهــــــرو په سېلاب جوته سو
د زړه پرهر په ســــــــره اورو اړوو

ګــــــــــوندې که ور د مراد وتکوي
پورته څپې د اســـــــــويلو اړوو

د هيلو بڼ ته د ورتګ پـــــــه تمـــه
د دمې مېنـــه پـــــــــه ازغو اړوو

د زړه ډال نه ســـــــته د بـــڼو غشو له
پـــــــــه تېښته کډې پر اوښو اړوو

د لټې څـــــــــڼو کې ويده نه سو ويښ
څــــــــــومره چې ژبه په پښتو اړوو

شهيد ارمان مو د زړه تل کې خښ دی
پر ســــــــر يې خاورې د سلګو اړوو

تندر نیـــــــــولی لمر د کلي زموږ
تور د تیارو څــــــــه له په شپو اړوو

د خـــــــتګر کوږ نیت ته پام نه کوو
ورانۍ د مېنې پـــــــــه پردو اړوو

د غـــره په حد کې وار په سپې رانغی
ملـــــــــــیاره ګاټې به ترڅو اړوو

(د غبرګولي څلورمه نېټه ۱۳۷۷ لمریز کال)



# د رحمت باران

د اور په دښته څڅېدلی څاڅکی
د وریځ له سترګو نه یم
خیر دی که ومې ځبېښي سرې سکروټې
خو زه به ونه ایشم
زه به سړه کړمه لمبه د غضب
او د ایرو نه به یې
شین سر راوغوړېږم
د ګلو اور به پدې دښته باندې ولړوم
کرکه به ووژنم، مرګی به مړ کړم
او ژوند به وکرمه

(د غوایي اته ویشتمه نېټه ۱۳۷۷ لمریز کال)



# خوب

بوډۍ په منډه منډه راغله د چینې غاړې ته
څو زرین خوب د سترو سترګو خپل اوبو ته کړي تېر
خو چینه وچه وه ډېرۍ وو پرې سپېره کودړي
د بوډۍ چاودې شونډې وښورېدې
څه یې د ژبې لاندې وویلې
د پورې شنه کلي باغو ته یې په حسرت وکتل
او خوب یې خوب پاتې سو.

( د لړم نهه ویشتمه نېټه ۱۳۷۷ لمریز کال )



# مروره اوښکه

زړه کې یوه خـــبره تاو راتاوه ســـي
ســـــره د اور بڅره تاو راتاوه ســـي

غــوا ړي چې تاله د شونډو ویلې کړي
ډېره زوروره تاو راتاوه ســــــــي

څاري د مــــــیوند د زمرو لاره نن
پـــــېغله سترګه وره تاو راتاوه سي

کـــــله له اټک نه څادر لـــرې کړي
کـــــــله له خېبره تاو راتاوه ســـي

مــــــــارې د ټټر نه لال د زړه غوا ړي
مســــــته پا ړوګره تاو راتاوه ســـي

زلفې د نور کاږي پر ویده احـــساس
څو مــــره خوندوره تاو راتاوه ســـي

خوله سوالــــګره نه ده خو الفت پسې
کې د ســــوال سندره تاو راتاوه سي

زمـــا ملنګې هیلې ګل ورک کړی دی
ژاړې له انـــځره تاو راتاوه ســـــي

بیا ســترې ککۍ د سالو اور غواړي
ګرځي له ګــودره تاو راتاوه ســـــي

نه ځاځي ګریوان نه سته په سترګو کې
اوښــــکه مروره تاو راتاوه ســـــي

غـــوځ به د ملـــیار ژبه سرونه کړي
لړ کــــــه بېخوره تاو راتاوه ســـــي

( د غوايي پنځمه نېټه نارنج ګل مشاعره ۱۳۷۷ لمریز کال )



# کرلی لمر

(له اغــــــیار سره خندا څه په کار نه ده )
یارانه د مچ عنــــــــقا څه په کار نه ده

دور بریښ د سپینو غاښو درنه غـــــواړي
د کندهاسې خوله خــــــندا څه په کار نه ده

ژبــه مله سوه د احـــــــساس د لیونیانو
عـــــقله وېره له بلا څـــه پـــه کار نه ده

په شپېلۍ د محبت به زلفې تـــــال کـــړم
دې ښــــــامار لره همســـا څه په کار نه ده

بر مې زړه دی ســـــپخېدلی کوزه پرې دی
درزي راســـه نور دعـــا څـــه په کار نه ده

لبونۍ به کـــــــــړمه ژبـــــه لیونۍ ته
تش په ســــــترګو کې وینا څه په کار نه ده

څپې اوښـــکې سوی ستومانه له پایبوسه
ســـه راړنګه پرې حیا څـــــه پـــه کار نه ده

پرهر ګل مې اوبوم په نم د اوښــــــــکو
چاودو شونډو ته مــــوسکا څه په کار نه ده

ســــــر په لاس رقيب آباد کې به دې ستايم
په ټيټکو د اوښ غـــــــلا څـــه په کار نه ده

شـــــــهزادګۍ د ارمانو مې غم پخه کـــړه
ګريوان نه ســـــته دی ژړا څـــه په کار نه ده

ډول ســـــــرني لره مې غوړې څنې ســــاتم
د پردو ســــــاز ته ګډا څــــــه په کار نه ده

د پګـــــړۍ پر ســــــر د وږي شـــمله ښايي
بې له دې بله ســـودا څـــــــه په کار نه ده

زه ملـــــيار کرلی لمـــر لـــــــرم په زړه کې
د ســــــــپوږمۍ ماته رڼا څـــه په کار نه ده

(د غبرګولي اتلسمه نېټه ۱۳۷۷ لمريز کال)

# د لوګرو میره

ورانګې د جبین دې د سپوږمۍ له مخ نه ځل ریبي
رد ځواب د شونډو دې ماشوم ارمان نه پل ریبي

ول دې د سکروټو شونډو سیځې د احساس فصل
لور مې د قلم ځکه لمبه لمبه غزل ریبي

څومره که بانه کړي په رنجو تېره د قاف ښکلې
ستا ساده ککۍ له نورو سترګو نه کجل ریبي

ستونی مې ګړنګ سي کمکی سوال مې په خاپوړو سي
خال د غونډې زنې دې د خولې د خواست تکل ریبي

اوړي د حیا ویرې رنګونه اننګو کې دې
کله اور سي وا اوره کله سره لمبه کنګل ریبي

دا چې شونډې ست کوي او سترګې دې ګواښونه کړي
دواړه دي ملګري د مین د زړګي تل ریبي

پرېوته کوهي د زنخدان کې مې یوسف نظر
ګوري د زمزم څپو ته تش کتو کې جل ریبي

مات به جام د شـــــوندو سي آخر د تلوســــو په لاس
پاس شـــــــراب خزي لاندې نه تنده ده ده مرچـل ريبي

نه به مري مـــــليار خبر دی که تېره سوی په ځنګ ترېنه
عـــــطر د خورو زلفو دې ژوند ښني اجــــل ريبي

(د چنګابښ څلورمه نېټه ۱۳۷۷ لمريز كال)



# خلیله خوله

د حیرت چـــــیغه له ګوګل د پرښـــــــتو ووته
چـــــــې مې کوچۍ مینه خـــزو نه د کمځو ووته

نه چې ښـــــکاري نظر د زړه ســـر په بڼو نښه کړ
بڼه د حـــــــورو مې کوډل نه د لــــــېمو ووته

ډیوه وه بله د نــــــــظر ژبې لـــیلا څــــتله
حـــــیا ســـوه خــــــړه له دېرې نه په توبو ووته

د خولګۍ ویش وار مې په غسل د خـــولو کې سو تېر
کـــــــافره ټنډه مې ثواب نه د ســـــــجدو ووته

توپان د مینې مې ګلـــــــــشانګه کړه را ړنګه پر ما
هـــــــــیله د زړه مې په شربت د شونډو ســرو ووته

نمروده عـــــــقله تا ګڼلې وې ســــــکروټې شونډې
خلیلې خـــــــــولې ته مې غوټۍ له سرو لمبو ووته

( د چنګاښ شلمه نېټه ۱۳۷۷ لمریز کال)

# سیوري

هغه چې سیوری نه لري نو لمر په کاڼو ولي
سالار د تروږمو ځکه سحر په کاڼو ولي

څوک نه سته چې سلام د نه ویشتو وکړي ښکاري ته
د کرکې ګوتې آن د خیال وزر په کاڼو ولي

رېبار د پاکې مینې ځکه نه رسي مالت ته
ښکارېږي کوم ناولی بر ګودر په کاڼو ولي

ښایسته د شیرینۍ اوربل به بچ سي له تاوانه
مومن لالی تورمخی پاړوګر په کاڼو ولي

سپین ستوري د وطن مې پردیسي دوړو سپېره کړل
د وخت دغه ناتار مې د زړه سر په کاڼو ولي

کاروان د ارمانونو په بیلارو لارو سر سو
تر شا غلیم د تللي پله اثر په کاڼو ولي

په ګاڼو به د سترګو ښکلوم هر یو ګوذارېږي
رقیب مې چې په لمسه د دلبر په کاڼو ولي

ملــــــــــياره نازولې کبر دو مــــــره ړنده کـــــړې
ما ســــــــــــر ورته نيولی دا ځــــــيګر په کاڼو ولــي

(د چنګاښ پنځه ويشتمه نېټه ۱۳۷۷ لمريز کال)



# د مينې ګايه

څاڅکي، څاڅکي څڅېده د زړه په دښــــته
اوبوله يې د مينې ښــــــکلې لـــــښته

د الفت بوټی چې ټول غوټۍ، غوټۍ ســـو
د باران ناوې سپرلي کې سوه پرې ســـخته

تور تندی مې د اشـــنا په وره کې مات سو
چاته نه ژاړم له دې ناکـــــــــامه بختــه

که زه، زه وم نو به زما په خوښـــــه څرخې
اوس د بل په مراد ګرځــــــه ياغي وختــه

سي نيمکـــــــــړې په بل څه ګايه د مينې
د پښتو ژبه ســـــــــوګند لره سوه هستــه



# چيغه

چـــــا په ګـــــناه چا په توبو وخوړم
څه عقلمن څه ليونو وخـــــــــــوړم

په غابښ چيچلو مې پولاد ويلې کــــړ
خو د وربښمو زولنو وخـــــــــــوړم

کرار، کرار يې راته پښې ځـــــــتلې
نسکور ګړنګ سومه ځپو وخــــــوړم

ډېرې مې وايستلې داړې آخــــــــــر
کنډاسې خوله ژامو پستو وخــــــوړم

هغه ســـــــوګند سومه چې پلې نه سو
ډېرو ناولو، ولو خــولو وخـــــــــوړم

مرتدو شونډو په ښکاره ځــــــــتلم
شېخې خوله شاته د پردو وخــــــوړم

ذهين ســــــرونو کې بې سره ســومه
په غېږو سر تشو سرو وخـــــــــوړم

لکه چې پرښه سي د وړانګو خـوراک
د ګل وطن مخ نه شغلو وخـــــــوړم

لمبه ســــوم وسوځېدم دوړې سومه
شهیدو اوښکو سترګو سرو وخـــوړم

د ګربت ځیرې ککۍ چـــــــا تړلي
ټپس په څو رنګه ځبرو وخـــــــوړم

ملـــــــیاره دادې د شاړ بڼ چیغې دي
وایي سپرلی بوله سرو وخـــــــوړم

( د زمري پنځمه نېټه ۱۳۷۷ لمریز کال )



# د غم تيکی

اې د صبا ستوريه د شپو له تيکي ووځه
وسپړېږه ګل سه د ازغو له تيکي ووځه

څو به ليونيه شمېرې ولونه د خورو زلفو
ځه د سپوږمۍ ښار ته د تيارو له تيکي ووځه

مارې د ټټر نه به دې لال د زړګي وباسي
نور د پاړوګرې د کمڅو له تيکي ووځه

خپله مينه مينه سه دارو سه نا سور ټپ لره
بس د بل په ياد د شوګيرو له تيکي ووځه

وڅڅېږه لاندې ګوندې زړه شين سي ګلونه سي
اوښکې پښتنې نور د بڼو له تيکي ووځه

هيلې راژوندۍ سه د سپېرو شونډو په څوکو کې
پړق وهه خندا سه د سلګو له تيکي ووځه

خياله هرڅه مات کړه خو د زړه کعبه ودانه کړه
مينه کې د نورو سوګندو له تيکي ووځه

ګل سه په سکروټو کې، نمرود ســــرونه وڅنډه
اې خلیله عـــــشقه د لمبو له تیکي ووځـــــه

وینې مې اوبه سوې اســــویلی مې د وږمې څپې
لښتې نوره شنه ســـه د غرمو له تیکي ووځـــــه

مړه ســـــول مقتدیان امامه ګوره ماسختن دې کړ
ماته کړه روژه دې د توبو له تیکي ووځـــــه

( د زمري شلمه نېټه ۱۳۷۷ لمریز کال )



# نغمه، توره او قانون

مسته نغمه یم د بلبلو پسرلی جوړوم
ځلانده توره یم، قانون یمه سړی جوړوم

دا چې کترې کوشېروم د ټوکیدلي صورت
لیونی نه یمه د مینې لیونی جوړوم

ما په بیلتون کې پخې کړې د وحدت قصیدې
زه د احساس په دم کودړونه منګی جوړوم

د سینې چج کې د خوږلن مخ نه اېرې څنډمه
دانې دانې یې ټولوم ترېنه زړګی جوړوم

سترو لیمو نه را تویېږم په کمره د ټټر
د نور ځړوبی یم له کاڼو نه غمی جوړوم

کجکول په غاړه ټپي زړونه، ځیګرونه غواړم
د ځلمي هوډ خوځنده ده یون ته سپیلنی جوړوم

خیر که سوځېږم څاڅکي څاڅکي پرې له پاسه څاڅم
د الفت مزي ته مرجانو کې سوری جوړوم

## ونیسه وړي د غنمو د ملـــــــیار غــــــــزله
## آزمون د وخت ته د احـــــــــمد بابا لمسی جوړوم

( د وږي شپږمه نېټه ۱۳۷۷ لمریز کال )



# ستړې او ښکه

لاندې ښخېدله خو ستنه سوله
ښکارې ستړې او ښکه پښتنه سوله

تلله خدای خبر د چا خاطر وو چې
بیا د سترګو کور کې میلمنه سوله

اوس یې د جبین لیدو ته تږی یم
څو مره په پوړنۍ کې درنه سوله

زه یې ناروا وو لره هو کړمه
دا زما روا سوالو ته نه سوله

ورو په ورو د تورو زلفو ماره یې
تاوه سو ملیار ته زولنه سوله

( و وږي اتمه نېټه ۱۳۷۷ لمریز کال )

# د شونډو اېلبند

خپل دي رانه پاتي په پردو مې ګــــــرځوې ځـــــه له
حسنه د ژوندو په هديرو مې ګـــــرځوې ځـــــه له

زه خو بس د ستا جبين ته سوی ســـــــپېلنی ومــــه
ښکلې اوس د نورو په سرو مې ګـــــــرځوې ځـــه له

ما دې د سپين مخ لارو کې ډېرې شــــــپې ليدلي دي
لمر کې مې د ډېره کړه په تيارو مې ګـــــرځوی ځـــه له

دا چې راته مينه کې له جـــــــــــرم او له توبو وايي
پرې مې ږده په دا ســـــــې ليونو مې ګــرځوی ځـه له

ما خو مې دا خامه ځواني ســــــتا په خوله کې درګـړله
پورته مې کړه وريت سوم په لمبو مې ګـــرځوی ځـه له

خير به سي د شونډو په ايلبند کې لږ ځـــــه مـــېنه را
زه ساده کوچی يم په ښارو مې ګـــــرځوې ځـــه له

پر ېږده ځاځکي، ځاځکي لاندې توی سمه سـيلاب سمه
وختـه دا په ځوکو د ښو مې ګــــرځوې ځــــــه له

ته يې ناسپړلې غوټۍ زه مـــــــلیار د حـــــسن یم
لاس را کړه چې ګل سې په ازغو مې ګــــــرځوې څـه له

(د وږي شلمه نېټه ۱۳۷۷ لمریز کال)



# د سترګو جنګ

پېښه يي د ســـــــترګو خو بانه د زړه په ســـــر لګي
هر ماشــــــــوم چې کاڼي واروي په قلـــــــندر لګي

سپين مخ نه يې شين ټيکری سو لرې سا مې لنډه سوه
بيا مې په چونۍ کــــــــــې د ګوګل د زړه وزر لـــګي

څـــــــــه وکوم شېخه دې ګناه نه ځان نيوی نه ســـــم
څېرته چې وي ښـــــــــــــکلي زما تږي پرې نظر لګي

اوس دې چې دمه کړمه پالنګ کې سر د شـــــونډو را
دې جنت د حسن کـــــې جامـــــونه د کـــــوثر لګي

خياله چې ټيټ نه سې هســـــــکه مېنه تل د هسکو يي
هر چېرې لومړی په لوړو څوکو نور د لـــــــــــمر لګي

(د تلې لومړی نېټه ۱۳۷۷ لمريز کال)

# د شونډو خیبر

تا پرون صــــبا وېلې خو نن په بل صــــبا تــــــړې
هــــر ځل چې مې وار رســــيږي ور دې د ښکلا تړې

څـــــــو چې مې رټې زه به نارو نه لاس په ســـر نه سم
یوه ورځ به مې خــــوله په خېر د شونډو خامــخا تړې

زلفې مخ نه لـــــرې کړه سپوږمۍ تندر نه وباســـــه
ښــــــکلې څو په تورو تروږمــــــو سپینه رڼا تړې

اوس دې چې ورشــو کې د ځوانۍ ښکلا شنه سوې ده
آس مې د نظر څـــــه له پـــــه پړې د حـــــــیا تړې

تا خــــــو دې د حـــــسن بڼ ته زه ملـــیار نیولی وم
دا د پیر بابا پـــــه توغ ریښکی په نوم د چــــــــا تړې

( د زمري اوه لسمه نېټه ۱۳۷۷ لمریز کال )

# د زړه زړی

دا چې ته یې ســــــره سپینه زما رنګ لکه مـــړی دی
ســــــتا پـــــــه اننګو کې مې کـرلی د زړه زړی دی

خود به تنده زور کـــوي د خولې پسې به خـوله غوا ړم
تا مې دا تنها کې ځـــــیګر مـــالـــــګه کې لړلی دی

ځـــــو پکې د شـــونډو له انګور نه جوړ شراب نه یې
مات ســـه ســـاقي خم دې زما خــمار لـره نیمګړی دی

حسنه تا خو لېچې ډېرې تاو کـــړې خو شرنګ نه سو
زه کوڼ یم که چا دې له بنګړو نه شـــور شـــړلی دی

هسک اورمېږ به ګرځي په ورشــو کې د تنکۍ مینې
څو د خیال د آس غـــاړه کې ســـتا د زلـــفو پړی دی

دا چې مې غـــزل نه نن د وریت ارمـــان لوګی خیږي
چغ مې د ســـــندرو په ځـــــنځیر د اور تړلی دی

مست ســـه ابا ســـینه برید د اور ســـه د رقیب پله ته
نور نو د ملـــــیار د صـــبر کلی اوبـــو وړی دی

(د تلې اوومه نېټه ۱۳۷۷ لمریز کال)

# غزل

د سرو شونډو خزه کې دی سرتېری د پېزوان پټ
ارمان یې له ګوزاره ځکه ځان کې ساتي ځان پټ

د اور غوړونه څک دي د احساس غړونه سوځي
په زغره کې د تورو ترېنه ساتمه جانان پټ

په خال مینه ستا کړې سجدې د ګرځېدو دي
د وریځو د محراب لاندې دی سپینو کې شیطان پټ

د اوښکو پېغله ووته سرتوره له لېمو نه
له شرمه مې زخمونو د ټټر کې سو ګرېوان پټ

سپرلیه لږ څه وسپړه دا تور ګل د بڼو یې
ښکارېږي رانه دې کې دی زمانه ټول جهان پټ

روژه مو سوه کلونه ملا بانګ مو تر غوړ نه سو
امام د کلي نه دی؟ کوي ځان لره آذان پټ

ملیاره ښاپېرۍ د زړه د نور حجاب کې ساته
د نن دا ټولې ښکلې لري سترګو کې دیوان پټ
(د تلې شلمه نېټه ۱۳۷۷ لمریز کال)

# د وخت پېغله

زړه د مينې مسلمان سو شپه او ورځ دعا د جام کړي
په محراب کې ستا د وريځو تور امام پسې قيام کړي

ستاله غاړې نه را ښکته ګلورين ځاې کې دمه وه
او س هغه او ښکه زمزم سوه ډک جامونه يې سلام کړي

د ښو لښکر دې ټول سو تورو سترګو دې اوربند کړ
ښتانه سره جرګه سول فيصله په نوم د قام کړي

د مين تږي زړګي مې سوال روژه دواړه په خوله دي
خو د سرو شونډو مالکه يو ماښام نه بل ماښام کړي

ګوره ودې ليد چې ناوې د قدرت څومره ده ښکلې
ملا ! ته چې پرې مين سوې خود يې هيله خاص او عام کړي

نه پوهېږم ورته څه سم دا د وخت پېغله لوريځو
کله جوړ راته محراب، کله ليندۍ کړي کله دام کړي

( د لړم نهه ويشتمه ۱۳۷۷ لمريز کال )

# بوره زرکه

ځــــانګه، ځانګه هیله د رڼا په لــــــمن پرېوته
اوښــــکه مې زمزم سوله چې ستا په لمن پرېوته

مار وخوړل خــــر بچي يې بوره زرکــــــه ولاړله
خداي خبر ســــلګۍ سلګۍ د چا په لمن پرېوته

دا چې چغ شهيد سو د بلبل په خوله کې، ګل ومړ
نه چې د يار ژبه د ښـــــېرا په لــــــمن پرېوته

وړې بار د سلګيو پېغلې شونډې په تنکو ځوکو
ســــــترګه د کوم ګبر د خـــــندا په لمن پرېوته

ميره د ســــــراب به سي اوبه ما جـــل وهلي ته
پــــــېغله د آمين که د دعـــــا په لــمن پرېوته

اوس به په توبو توبو دنـــــــــيا په تــوبو راولي
ناوې د تقدير مــــــــو د ملا په لــــــمن پرېوته

نن د غــــــــزل تورو نه د چــا د راتلو غږ راځي
ښـــــکاري چې د بخت ملکه زما په لمن پرېوته

(د لړم نهه ويشتمه ۱۳۷۷ لمريز کال)

# د زفاف شپه

څو مره ښکلې شپه وه محتسب ځنې حساب ورک وه
زما نه وې تسبې ورکې مـــــلا ځنې کتاب ورک وه

زه نـــشه، پتنګ نـــشه، ډيوه نـــشه وه جام نـــشه
ما نه ليد ســاقي، ســاقي زه نه ليدم شراب ورک وه

زما نښې د شـــــونډو خلاصه وه ستا د سپين بدن
هو ښ ســــره حيا وه تللې حـسن نه حجاب ورک وه

هرڅـــــه هرڅـــه ځل وهل د مينې نور وينځلي وو
شــــيخ نه ؤ، دوره نه وه، عـذاب نه ؤ ثواب ورک وه

شـــــونډې به لا وچې نه وې جـــــام به بل راپرېوتو
تنده وه هرلـــــورې ډک رودونه وو سراب ورک وه

زمـــــا آدم خــــيال کــوډل د مينې نه راونه ووت
زلفې د درخــــــو يې لـوبولې ترې رباب ورک وه

تېره شــــــپه جنت کې وم مېلمه کوربه مې حوره وه
زما نه وو ســــوالونه ورک هغې ځنې ځواب ورک وه

کېښودو بلبل یو ثـــــاڅکی عطر د غوټۍ خوله کې
پانې په چکچکو سوې مـطرب نه نغمه باب ورک وه

( د لړم نهه ویشتمه نېټه ۱۳۷۷ لمریز کال )



# د کنهو ښار

د زړګي مــــليار مې ړوند سو ګلان غواړي له انځره
د کنهو ښـــار کې يې سوال دی د ګونګي د خولې خبره

يکه زار يې دی وژلی، بګـــتی، لــــنډی ژړيــــږي
د ډول ســـــتوني کې ده ماته د پښتون د بخت سندره

لکه ســور د اسرافيل سو هر پوکي کې اېلبند وژني
د شپونکي شونډې پردی دي که شپېلی سوه مروره

يا حـــــسنونه نظر وژني يا نظر د ســــــترګو بد سو
که نه ځـــومره مات منګي مو سپېلني کړل له ګودره

د دنيا غيرتي خدايه بل مـــــيوند زما په نوم کــړې
زيړ ايوب زړګی مې غـــواړي بيا ملاله سترګه وره

فرياد چېرته يو ســــــم شـــښخه په هيڅ حد ترلې نه ده
زما د زړه د څراغ غــــله ده يوه پـــښغله پاړوګـــره

زه خو ځــښت هغه ځپه ده بې له مانه ښـــکلې هېڅ ده
که هغه خور د ســــــپوږمۍ ده زه د لـــمريمه بخره

(د ليندۍ لومړۍ نېټه ۱۳۷۷ لمريز کال)

# جلاد لمر

ته سپوږمۍ که پرښته یې څه بلا یې تېغ نظرې
ستا پښو ته کښاوې سوې د رڼو ستورو ککرې

خبر آذان د میني وکړه د ماشوم احساس په غوږ کې
ګبر خیال مې مسلمان کړه اې د حسن پېغمبرې

سره مښو که سرې منګلې هسې ګرځې زیارتو کې
زما د زړه باز یې ځیرلی دې پستې سپینې کوترې

دوزخي بادونه بار دي د وږمې په نرمو ولو
دار د وړانګو کې ځړیږي پېغلې زانې سپین وزرې

د رڼا توره په لاس کې لمر جلاد سو ستوري وژني
مرګ د نور په ګډا لمانځي د تیارو د دیو لښکرې

پړسېدلې سینې اوړي ځوانیمرګ کبان اوبو کې
د چینې تي زهرجن سول تربنه نه راځي شکرې

ډېر ګلونه د ښو وو تاندو هیلو غوړولي
پاڼې، پاڼې اوس رژیږي لار بدله کړه دلبرې

# کم اصله

ما هڅه ورته تیلی کړلو
د زړه وینې مې تیل کړې
ما ویل چې به ډیوه سي
خو
هغه شیطان څراغ سو.

(د مرغومي اوه لسمه شپه ۱۳۷۷ لمریز کال)



# د راز کیسه

تش جـــام دا ســـې کیسه په خوله بربنډه وه نېولې
چې شـــېخ بیګا د رز د جـــینۍ ګـــنډه وه نیولې

په ټوکو ، ټوکو پـــښه د چا د شـــپې وښــو پېدله
ســـــبا یې بیا په تور خـــواره ملـــنډه وه نیولې

ســـــــودا په رضا ســـوې زهده زه ملامت نه یم
د شـــــونډو پېغلې خـپله ســـــینه ټنډه وه نیولې

د لـــــمر امام ویده وو خــــو ګل پرښې وخندلې
پستې دا د مـــــزې شــــپه ډېره لـــنډه وه نیولې

پنډې د وچو شـونډو مې پېزوان ته عرضې ناست وه
د خال ســـــپاهي ترې بیا د شـــاتو ګنډه وه نیولې

( د مرغومي اوه لسمه نېټه ۱۳۷۷ لمریز کال )

# جواز

په ملا نری ځلمی مچکې له ګل مخو اخلي
خو ستا له وېرې خوږې نارې تو کوي خوارکی
ته بیا په هر سهار ها خپلې مبارکې شونډې
په دې تو کړو باندې ښې غوړوې
ته د مچو په تفاله خوله ترکوې خو زموږ
ماشوم د شونډو ته ببو د ګناه بوخ، بوخ کوې
ستا شات خوړلو ښه جواز د ښکلولو راکړ
نو زه هم والوتم ، مچۍ سوم، بڼ د ښکلو ته ځم
پوه سوم چې شات دومره خواږه دي نو مچو به څه وي
ولاړم مچکې له پۍ مخو اخلم
او ته کندو ته راځه !

(د مرغومي د برشمه نېټه ۱۳۷۷ لمريز کال)

# بدر

ســالارد ښو د نور په ځل جنګ د کابې ګټلی
لاهـــولېوال د یون بل بـدر له لمبې ګـټلی

د رڼا ګوتې د تیارې مـــرۍ ته ورســـېدې
یاغي مـــلنګ جنت د حـــسن له توبې ګټلی

د ارمان مـــېنه مې ولجه کـړه روماني ملکو
واک د خـندا مې د پېزوان لاندې سوبې ګټلی

د جـــواري میدان کې څه بایلې ناکامه بخته
لال د زړګي خـــو د آزمـــون تېرې شېبې ګټلی

شـــېخه هغه پالنګ چې ته یې تر سبا یادوې
مـــلیار په نره د انګورو په تسبې ګـــټلی

(د زمري اتلسمه نېټه ۱۳۷۷ لمریز کال)

# د زړګي چونغر

د خوږې حــــورې خوله چې ستا له جامه پاتې سوې
د ښــــکلا د ياد تسبې ده له امـــــامه پاتې سوې

روژتي لاليه څه ســـوې دا د سپينې خولګۍ مـيره
ســــتا په تمه ډډې شونډې څو ماښامه پاتې سوې

د لمبه زړګي چــــونغر کې لا د کـــکوبک آواز دی
دا ســــــې مه ګڼه چې زرکه له کـــلامه پاتې سوې

پت د مينې په ځــــــای سوی د نظر په پاني پت کې
هــــندوکۍ الله الله کړي له رام رامــــــه پاتې سوې

ژبه دا ســــې او ده کړې برګو غـــبرګو پاړوګــــرو
تل د زړه کيسه ترې وروســــته له سلامه پاتې سوې

ښـــــکلوي للمي ګلونه د نوا د پل ښـــــکالو يې
د راغــــه تر خنګه غلې څوک له دامـــــه پاتې سوې

که څه هم د ســـپېدو خوب وم هېڅ تعبير زما ونه سو
لکه برخـــــــه د يتيم چې تل له پامـــــه پاتې سوې

جنازې ته مې د اوښـــــکو هــدیره د ګرېوان نه ستـه
د ښو په تور تابوت کې له ناکـــــــــامه پاتې سوې



# د زړه چمبه

د زړه غـــــلې چمبه مې چا په مــــــينه تخنولې
کەلاس د مسيحا ده وچــــه ويـــــنه تخـنولې

د هـــــيلو پېـغله کټ کې د زړګي اوړي را اوړي
مولا دې خـــــير کړي بيا مومن شيرينه تخنولې

د ســــوې شپېلۍ غږ سره شرنګی سو د پاوليو
ښــــکاريږي کوم کوچي بيا خوشه چينه تخنولې

څــــه پام ساتئ کاواکې مې په بدو ونه لمانځئ
د ډډو شـــــونډو ست خــــــبره سپينه تخنولې

ملــياره په دوو سترګو به دې خود ګلان ټوکيږي
په څــــوکو د بڼو دې ګــــلورينه تخـــــنولې

( د کب اتلسمه نېټه ۱۳۷۷ لمريز کال )

# غزل

چې چېرې ښــــکلې وينم زړه مې ښوی له واکه وځي
غزل، غزل لوګی مې د ځـــــيګر له کـــــاکه وځي

ښـــــــکالو د کوم چنار خيال يې غوړ ته رسـېدلی
د تورو چـــــته پېغله مې له خــــوله کاواکه وځي

يو لال مې وو ســـــاتلی خو د ســـــتا ناکردو وســـو
د هر توري په ځـــــای يې پاس پر ســــر تڼاکه وځي

ياغي لـــــــيلا تر څـــو به راته ږدې په شونډو ګوته
نږدې دی ډک زړګـــــــی مې د ګرېوان له څاکه وځي

د قاف د غـــره د ېوان يې تښتولو ته په څـــــار دي
د شــــــعر ښاپېری ځکه له قـــــلم شـــکاکه وځي

ملـــــــــــياره څو دا ستا ميخور نظر په ميکده وي
تر هــــغه به خـــــوږه نشه له بنت تاکــــــه وځي

( د کب اتلسمه نېټه ۱۳۷۷ لمريز کال )

# سخات

هلته د شپې د څپر لاندې د سپوږمۍ تندي کې
باران وهلې دوه خیشتې توتکۍ ګونګې ناستې
ډیوې د اوښکو بلوي د کوم ارمان په قبر
او باد تارونه د ستار خوروي
سخات د سندرو ویشي

(د وري لومړۍ نېټه ۱۳۷۸ لمریز کال)



# دعا

په بنکه د ګربت
د شنه اسمان له مشوانۍ نه
يو څو څاڅکي رنګ را اخلم
او په پانه د سپوږمۍ کې
دغه سوې دعا نغاړم
پښتانه پښتانه ډېر کړې !
لويه خدايه ! لويه خدايه !
او زما د زړه په ژبه
د شملو ټولې خبرې
د کيږديو ښې سندرې
را پېرزو کړې لويه خدايه !
لويه خدايه ! لويه خدايه !
( د کب پنځه لسمه ۱۳۷۸ لمريز کال )

# ربنتینواله

زما ښیښه خوښه ده
زه په ښیښه مین یم
ځکه، ښیښه نه په چا سیوری کوي
نه له چا وړانګې نیسي
ښیښه تور، تور ښیي
سپین، سپین ځلوي
نو
زه په ښیښه مین یم
زما ښیښه خوښه ده

( د وري شپږمه نېټه ۱۳۷۸ لمریز کال)



# د لنډیو شرنګی

په ما تړې دا څـــــه تندر له پا ســــــه پرېوتلی
راکړی جــــام مې څو ځلې له لاســــه پرېوتلی

دا نیم ســــوی الوی زړه د چا په اور ستي کړم
مــــجمر د مینې ســــوړ سو له برا ســــه پرېوتلی

ملالې د لنډیو په شـــرنګي باندې یې جګ کړه
د هســــکو برېتور ځلمی له آســــــه پرېوتلی

ملـیاره په سینه کې دې دا هسې وړې هینداري
د یار یاغي نظـــــر دې له الماســــــه پرېوتلی

(د غوايي پنځه ويشتمه نېټه ۱۳۷۸ لمريز کال)

# د رنجو پنې

چمبې وهي دوکړه ماراني د غم
د ویر کړزه بیا په ورا راغلې
او د سپوږمۍ له کلي
خدایزده د چا دېرې ته
خدایزده د چا کلي ته
خدایزده د چا بدو کې
د خندا ناوې په ډولۍ کې د سلګیو بیایي
او د رنجو پنې په پښو کې
رنګې بنګې اوښکې
لکه همزولې د خندا د ناوې
امیل امیل دغې ډولۍ پسې ځي
نو
ځکه رڼا د سپوږمۍ تته ښکاري
ځکه د نور چینې ځبېښلې برېښي
او تندر نه ماتیږي

(د وري دیارلسمه نېټه ۱۳۷۸ لمریز کال)

# غزل

لکه خبره مې د ژبې سر ته ښکلې راځي
غزل، غزل سي د زړه کورته نابللې راځي

منتر به پوخ سي او ها سپینه تښتېدلې ماره
شونډې به چیچي د شپېلۍ غږ ته به غلې راځي

د خال امامه راته ستوري یې سجدې ته بوله
د تورو پېغله د زړه وینو کې وینځلې راځي

ښکاري کوم باد بیا د څنار له څانګې خرپ ایستلی
چې رنګ ګودر نه سوې ساندې د سینځلې راځي

کوم سندر بول سر به یې بیا له سرې مرۍ کښیوځي
خولې د تیغکې نه نوا نن د بلبلې راځي

د ښاپېریو توغ به بیا سي په لنډیو پورته
د قاف میونه ده ملالۍ توره ایستلې راځي

د شونډو بڼ کې یې ملیار د بوسې زړی ایښی
څکه یې خوله باندې غوټۍ، غوټۍ ښکنځلې راځي

(د غبرګولي پنځمه نېټه ۱۳۷۸ لمریز کال)

# غزل

ازغي په ښوکو وړي د ګل جنازه
په ټيک بار سوې د اوربل جنازه

د خال امام نه تکبيرونه تښتي
پيکي راوړې د سنځل جنازه

حبش لښکر يې د بڼو را درومي
مينو وکړئ يو د بل جنازه

خوشاله توره دې ايستلې ساته
لږ ده چې بار سي د مغل جنازه

مليا ره زړي مو د بخت وچ سوي
چې په اوږو ګرځوو تل جنازه

( د زمري دولسمه نېټه ۱۳۷۸ لمريز کال )

# د غنمو وږی

زه لا په خپلو ولو بار وم
هېڅ امام مې نه وو
چې جنازه مې وکړي
خو د نړۍ د تقدیرونو باچا
زما په برخه کې بیا ژوند ولیکه
هوکې ښکالو د کوم ملنګ د قدمونو راغی
او د غنمو دوه درې وږي يې د نور په ګوتو
زما سپېرو څڼو کې ورو وتومبل
ماته يې ژوند وباښه
او زه بیا بېرته زه سوم

(د زمري دولسمه نېټه ۱۳۷۸ لمریز کال)



# د ساهو په یاد

سپین کتار د زانو مات سو سیسی ژاړي غلي غلي
چنار رنګ د عاطفې ســــو څانګه ماته د سینځلي

د شنې ولې ســــــیوری ومړ د بنګړیو شرنګی ومړ
د رنګونو مـــور ســـوه بوره د ننګونو زړکی ومــــړ

په دېرې د ولولـــــو کې د ماتم چـــیغه ســـوه ګډه
د ننګیال ویر ختم نه وو ســــــــاهو وتړله کــــډه

بل ځلانده ســـــــیوری ووت د ادب له رونې مـدا ره
بل ملنګ بل قــــــــلندر مو ولاړو ووت له کـــتاره

شنې ځولۍ د پســـــرلي نه یو ګلاب په خاور پربوت
د احساس د پیر له لاسه سپین کتاب په خاور پربوت

بیا د بل بلبل ســــــندرې د مرګي رانجو کـــړې غلي
چنار رنګ د عاطفې ســـو څـــانګه ماته د سینځلي

# ګیله منه اشنا

ګرانه پوهېږم ګیله من یې رانه
چې په خبرو دې ستایلی نه سم
ښکلا ویشتلې د منکر غشي ده
ځکه د راز کیسه ویلی نه سم
دا چې لېمې هم څه ویل نه کوي
هره خبره یې په اور اوړي
دلته هرڅه هرڅه غوربو نه لري
آن د ښو د څوکو شور اوري
نو راځه !
راځه چې نور روژه د ګونګې نیسو
بس د زړګي تل کې به مینه پالو
یوه ورځ به ګل سي څانګې څانګې به سي
شپه به کړي رنګه وړانګې وړانګې به سي
بیا به په هر ځای کې ستاینه یې ستا
بیا به هرڅه هرڅه کړي ژبه پیدا
بیا به سپېرو څنو نه ګرد وڅنډو
له غلي ډول نه به آواز جګ کړو
بیا به د برې ته چلمونه باسو
له زوړ رباب نه به هم ساز جګ کړو
بیا به ښکاره غاړه غړی سو اشنا

بیا به مسرۍ د کاکړۍ سو اشنا
خو اوس راځه روږه د ګونګې نیسو
بس د زړګي تل کې به مینه پالو

( د کب ځوارلسمه نېټه ۱۳۷۸ لمریز کال )



# غزل

دا څـــنګه بېخودي ده چې نغمې په تار بښـــــويږي
هر واري له ســــاقي نه جام زما په وار بښـــــويږي

چا بنګ زموږ ملنګ ته د قلنګ په نوم ورکــــــړي
يا يې پل په لار بښـــــويږي يا يې پل نه لار بښويږي

نه يار ســـته، نه چنار ســـته د منګيو ميره ســـوځي
مرۍ، مرۍ خوله يې په سپين مخ کتار بښـــــويږي

مودې ســـوې د ټپو پېغلې ته چــا رانجه ورکـــړي
سُر مات دی، لې ګډ ســـوی له مطرب ستار بښويږي

ملګـــــرو د قدرت د ښـــــاپېرۍ کوډې دي نورې
دربار کې يې د ډېرو د ايمان مهار بښـــــــويږي

د مينې مســــــلمان سه که د حـــسن جنت غواړې
د وصل له صــــراط نه يې بس ســـره کفار بښويږي

ملـــــياره د ســـــپوږمۍ مخ د منکر وربځو نيولې
قلم مې ځکه تم دی او کــــرار کــــرار بښـــــويږي

# غزل

تر څو چې مې د خيال چنار غوڅــــيږي ځانګې ځانګې
تر هغو به مې ژبه لا غځيږي ځـــــانګې ځـــــانګې

هغه وله اوس نه ستــه چې نو مونه مـــــو پرې ليک وو
خو مينه مــــو ژوندۍ ده او غـوړيږي ځانګې ځانګې

د هار په ځای په ســـــپينو غاړو هــار د دورو زانګي
رانه سې ! که اواز مې درر ســـــيږي ځانګې ! ځانګې !

چې څــــه ګلان به وکړي زړه کې ســـتا نوم مې کرلی
دا اوس خو تور لوګی تر بنه جــګيږي ځانګې ځانګې

په ما وچ موري ســـــپينه ابۍ وچه ســـــي د وربځو
ډک تي ګوره په نورو ور خـــــوريږي ځانګې ځانګې



# غزل

د تندر ورا ده ناسته د سپوږمۍ کلي کې وير دی
شپېلۍ ده ماته سوې د کېږدۍ کلي کې وير دی

د خوارې سندربول لالي ته چا رانجه ورکړي
سلګۍ، سلګۍ، سلګۍ دي د غوټۍ کلي کې وير دی

يو ازې سوه نازکه به اوس ترک له غمه وچوي
آه اوښکې هم ترې ځي د توتکۍ کلي کې وير دی

هر ول د ګارګوتي پيکي تابوت د يو ارمان سو
پېزوان دی وژل سوی د نتکۍ کلي کې وير دی

شرنګې د لنډۍ نه سته کاکړۍ په زيندۍ سوې
ايوب له تندې مړي د ملالۍ کلي کې وير دی

شپول ړنګ رمه ده ورکه د شپونکي شونډې پرې سوې
ټول کړکي سوځېدلي د (هوسۍ*) کلي کې وير دی

بندي ده توره ديو سره سروالې د لنډيو
(مغروره*) کړې سلګۍ د (ښاپېرۍ*) کلي کې وير دی

ملـــــــياره ســـــــتا غزل ته به ځوک دم د مسيحا سي
د ېره د رباب ورانه د شـــــــــپېلۍ کلــــــي کې وير دی

( د وري اوه لسمه نېټه ۱۳۸۰ لمريز کال )

* (هوسۍ) ، (مغروره) او (ښاپېرۍ) د ليوال صاحب د ارشاک او اوشاس انځورونه



# د رڼا نذر

لا تورې سترې نه دي
لا اوښان وږي ښکاري
او د ځوځانو پر ځای
زموږ د مېنې پر ګلانو باندې شخوند ماتوي
لا پټ په سپینو کې شیطان زما ساده ولس ته
جام د کوثر کې د مرګوني زهر غړپ ورکوي
لا مې د ستورو کور تیاره دی
په تورتم کې اوسي
او د سوال لپه یې ړنده ده
له شیطان څراغ نه
د رڼا نذر غواړي



# سر زوره اشنا

وايه تر څو به اشنا
ستا د نادودو پښتی
د تقدس په نوم پر سر ګرځوم
قسم نړدې دی سترې ملا ځنې مې کړس وخيږي
او ناويلې نابللې مې په ژبه راسي
بيا به نو تاته، ماته څه پاتې سي
وايه سر زوره اشنا
سپينو کې توره اشنا



# غزل

په اور د ترهمو اوښکو مو د زړه کلا سوځيږي
و مخ ته د پې مخو مو ايمان حيا سوځيږي

دا څنګه له مالوچه پوست صورت برخې راکړی
لمبې يې هلته لرې دلته زموږه خوا سوځيږي

دننه مو د کومې نازولې ګناه اور دی
د لپو په زانګو کې مو ماشومه دوا سوځيږي

سپوږمۍ شپنه د ستورو د لمبو تندر نيولې
نو ځکه په شپېلۍ کې د الفت نوا سوځيږي

دې اور نه به روڼ مخی دا د مينې کور راوځي
چا ويل چې د مليار زړه کې د ګل ښکلا سوځيږي

( د ليندۍ اوه لسمه نېټه ۱۳۸۱ لمريز کال)

# غزل

هوس وم رانيولی له ګربوانه نيمه شپه کې
ستا سترګو پردی کړی وم له ځانه نيمه شپه کې

که چېرته په لاس راغلې زړه له ډاګه به دې ولم
څووم ځلې مې باسې له ايمانه نيمه شپه کې

څه خوږ رنګين مزل يې زما په برخه وو ليکلی
د شونډو په پل راغلم تر پېزوانه نيمه شپه کې

ستمی وو پسپسی وو پاس په بره بامبوټي کې
د شونډو سوال کوو کوم چا له چانه نيمه شپه کې

چې هسک سي پر اوږو مې د ښکلا څوکو ته يوسي
د خدای غزل را واوروه جانانه نيمه شپه کې

# غزل

پیر زورور وو د ملنګ خـــــدای یې پرده کړې وه
چې د یاغي ســــترګو په یاد یې لړ نشه کــړې وه

که نه د تاک د مرید لورته خـــو موږ تږي ناست وو
خو موږ په زوزو شـــپه کړه تېره هغه ښـــه کړې وه

شـــېخه یو څه مې زړه ببوا که بل پېی مخې ښې دي
قـــسم یو څو شـــېبې له مخه مې توبه کړې وه

هغه ســــهار مې د قلم ژبې رنګونه شـــیندل
چې په کودوړو د مات سوي خم مې شـــپه کړې وه

نه چې د ســــپیني خولګۍ بیه دې له سر واوښته
ګلې واده خو دې د شـــونډو ښـــه پخه کړې وه

# میره

لوبغاړي: راوي- د راوي ملګری- شاعر ملنګ- خړ ملنګ

(راوي)

دلته سپین لمنې څومره ژر په ناروا نیسي
دلته په آسانه تیارې مخه د رڼا نیسي

دلته بې پوښتنې تهمتونه په سپوږمۍ تړي
دلته بس د اور په ځنځیر ستونی د شپیلۍ تړي

دلته لا د زاڼو د کوترو ښکار روا ګڼي
دلته ډیري خلک د هوسۍ منډې ګناه ګڼي

پیره له دې ځای نه مې ګیلې درته راوړې دي
څو ترخې شپې د ترخه عمر مې پیبیلي دي

راسه په رڼو سترګو یو سوی انځور ووینه
راسه مخامخ دلته نادودې د اور ووینه

***

هاغه لکه زرکه چې په څوکو د پنجو ګرځي
ها د پېغلو میره چې چا پېره له منګو ګرځي

هاغه چې کمځۍ یې ښـــاماران د زړونو ښکار کوي
هاغــه چې په هرواري کـــــــــتلو په زړه وار کوي

بس د ښــــــایستونو او حـــیا پوره هـــیندار ه ده
ښـــــــکلې دنیاګـــۍ ته د ورتلو رنګـینه لاره ده

دا چـــې نه یې کورکې یې چوپتیا ګونډې وهلې یې
ته به وای ګونګۍ دي ټولې شـــــونډې غلې غلې یې

دا خو بس یو کـــان د ښـــــو ده پټه خـــزانه یې ګڼه
سرســــر د شودو ده د الماس ســــوچه دانه یې ګڼه

پټه ده حیا کې د پښـــــتو دا د ســـپین غر هوسۍ
کټ مټ لکـــه زغـــــرو کې ولاړه د هنر هوســــۍ

بس دې پیره تاته یې هـــمدومره لنډ پیژند ښـــه دی
وایي چې په ډېرو لیوني خوښ یې لږ خوند ښـــه دی

بیابه موده وروســــــته مخامخ د پېښو ښـــار کــوو
ښـــه پای ته به یې دواړه دعاګانې وار په وار کـــوو

***

(څه موده وروسته)

(راوي)

پیره ښــــــکاري پا ښلې د کیسـې ته تلوســـه کې یې
داسـې راته بریښـــي چې راغلی نیمه شـــپه کې یې

(د راوي ملګرى)

یاره ما ویل ګـــورم کـــه مې چېرته بیدۍ میره سي
زه به یې مرید ســــــم که دا میره زما پیره ســـــــي

شرنګ به سم، لونګ به سم، ملنګ به سم غزل که سي
ســــــرترپا یه رنګ به سم راجوړ د مینې چل که سي

دغه نګه پرښـــــــه به د ګل پاڼو کـــــې ســـــاتمه
دا د عطـــــــر ناوې به ســـــــنځل پاڼو کې ساتمه

(راوي)

پام پیره لږ تم ســــــه ستا د پټو ســـترګو منډې دي
لاندې به ګوزار سې ســــتا په مخ د ګړنګ څنډې دي

مینه دې له پیله نیمه خوا ســـــوه چې نیمګــــړې ده
دغه ښــــــایستو کې د بل چا په بند تړلــــــــې ده

چېرته کوم شاه زوی دی چې د دې زړه یې ګټلی دی
دا لکه ښیښه حسن یې پیر ځانته منلی دی

کال کیږي چې زړونه یې د نظر په تار تړلي دي
هیلې، تلوسې یې د ارمان هار کې پېیلي دي

دلته مینانو لا د مینې پت ساتلی دی
دلته محبت لا د زیارت غوندې سپېثلی دی

دلته مینه ټوله د حیا په لاس پسوللې ده
دلته لا تر اوسه مینه هغه شان آغلې ده

دلته خو دیدن بس د نظر یو جنګول ګڼه
دغه د نظر جنګ د دیوانو ثملول ګڼه

دلته مینې پیره د اوبو غوندې سپېثلې دي
دلته د دیدن شېبې زمزم په شانې ولې دي

مور د ځلمي لار په ریبارۍ پړنده خاوره کړه
ثو ځلې یې هلته د خیښۍ ځولۍ اواره کړه

پلار د جینۍ سر کې د ولور ورانه نشه لري
اوس پورې ښکارېږي چرګ یې بس یوه پښه لري

سم د ریبارۍ سره خبره ډنډوره سوله
میره پلانی غواړي ! ښکته پورته اوازه سوله

دا اند وو چې دوی دواړه خو مځکه آسمان لرې دي
مور یې په کوم زړه دې مرکې ته ورداننګلي دي

خلکو ویل هرومرو څه پټه غلې منځ کې ده
دا زړورتوب خو بس د مینې خواږه رنځ کې ده

بس د خلکو خولې دې څوک خولبول وراچولی سي
تشې نغارې ښکاري خو کلي ورانولی سي

لښته په نازک مخ د تهمت سیلۍ وهلې سوه
دا چې نګه شرنګ نګه نغمه وه غلې، غلې سوه

نور ددې خوارانو د نظر مزي لنډ سوي وو
ټول د کلي خلک ددوی مینې ته خنډ سوي وو

ډېره موده وسوه ددیدن ماڼۍ یې ړنګه وه
دا د حیا زیرمه د دیدن پسې ملنګه وه

تېر ماښام یې پاڼې د دیدن په اوبو ولې سوې
اخ د زړه یې ووت د ګوګل لمبې یې غلې سوې

بیا یې اننګي سره دي چا څه ورته منلي دي
چا یې په تندي کې د ارمان زړي کرلي دي

مورته د ځلمي هم لږه لاره ورکړ سوې ده
ځکه د خیالونو دنیاګۍ یې نوې ، نوې ده

څه پیره نن بس دی پدې ځای د کیسې دمه ده
دلته به یې پرېږدو چې لا میره مو بېغمه ده

ګورو له دې وروسته به پدې مالت کې څه وینو
خدای خبر چې څومره به ترخه څومره خواږه وینم

***

( شپږ میاشتې وروسته )

(راوي)

پیره وایه شپږ میاشتې ددمې څنګه تیرې سوې
برخې د کیسې دې دي په یاد که درنه هېرې سوې

زما خو یې د ذهن شنه ورشو ټوله نیولې ده
بس دغې کیسې مې په زړګي کیږدۍ وهلې ده

(د راوي ملګرى)

زما ســـره هم سأ غوندې ملګرې ده تر اوس پورې
پاتې يې رابوله زړه مې تنګ دى نور نو څه ګورې

دې مورمړي ځـــنډ خو د وينې په شـــان خوړلى يم
پاې ته د كيسې دې ياره مـــړې تبې نيولـــــى يم

(راوي)

دې ورځـــــو كې ميره د هوســـيو ډل نه بېله ځي
كټ مټ لكه كلـــــه چې خيال غـــزل نه بېله ځي

اوس تياره ماښـــام كې د ګودر په لور ځښيږي ځي
شونډې يې تل ښـــوري ته به وايې چې غږيږي ځي

ډله د همزولو يې ها ګـــــوره په لار ګډه ســـــوه
جګه د عطرونو د ښـــــــايست رنګينه ګډه سوه

نه سته ده ســـرواله يې مستي ددوى نيمګـــړې ده
چـــا ترې ښـــــا پيرۍ د خوشـــــاليو په غلا وړې ده

څه شبېه به تم ســــــو چې رڼا خپل ټيكرى وځنډي
وخت د منډو ترړو غوټه بيا په بډه ومـــــــــنډي

میره به پېدا سي ښـــا پېرۍ ماښامۍ ســـوې ده
سیورو نه ویریږي مار چیچلې هوسۍ ســـــوې ده

شونډو یې خندا څه چې ترخه موسکا هم نه زده ده
اوس ددې منګیو میرې شــــــور او نوا نه زده ده

(د راوي ملګری)
بس دی یاره ځـــو به دغه حـــال یې زه لیدی نه سم
تیږي نه جوړ نه یم دغـــــه غم ته ټینګیدی نه ســم

خامــــــخا پدې غـــرونه نادودې وربدلي دي
دا چې مستې سترګې یې له ښـــکاره دربدلې دي

ښـــــــکاري زلزلې یې د زړګي ښـــار نړولی دی
شـــــرنګ د خواږه غږ یې د لمبو ځنځیر تړلی دی

څه چېرې ګوښــــــه غاړه په غاړه دا غـــم وژاړو
ښـه پای دې کیسې ته د ښایست له خدایه وغواړو
***

(راوي)
درې میاشـــتې ترمخه زموږ د میرې بخت په غم پرېوت
پاس د ویر په کرښــــه د قدرت د لاس قـــــــلم پرېوت

وخت ددې ګلپاڼې له رنګين حسن نه رنګ وویست
خدایزده په کوم تور یې له سینې چم نه لونګ وویست

پیره دغه راز به له ربې هینداري وپوښتو
ځه چې له شاعر ملنګ نه تللې لارې وپوښتو

(د راوي ملګرى)
یاره خداې لپاره ماته ګوډې ماتې مه وایه
ما ساده ته دا د راز کیسې میراتې مه وایه

زه نګه آمې یم ملنګانو نه په څنګ ګرځم
خپل رنګ نه وبربړم له هیندارو نه په څنګ ګرځم

(راوي)
دا هغه هینداره ده چې بس وښو کې ښه ښیي
دومره ده آغلې چې سکاره رانه ښیي

دا خو د شاعر ملنګ د خیال رڼه هینداره ده
بس د عاطفې او مینې ښارته سیده لاره ده

راسه پدې پوه سو چې مو میره چا ځپلې ده
دغه د نوا شازادګۍ ولې غلې، غلې ده

(د راوي ملګرى)

ســـــمه ده، پوهېږې د ښـــــکلا له غمـــــه مړ يمه
چېرې چې ښـــايست وينم کـــــتلو ته يـــې پړ يمه

ماته د ښـــايستو کو غم ښـــادي دواړه ښاغلـي دي
زه ســـــاده ملياريم ټول ګـــــلونه ماته ښکلـي دي

ځه توکل په خـــداى چې دا کـــيسه پاى ته ورلنډه کړو
هرڅـــه چې پېښيږي دغه غوټه به په ګنډه کـــــړو

***

(راوي)

ځه چې د شـــــاعر ملنګ خيال له ګوتې ونيســــو
دا مريد د خــــال راوي د تال له ګوتـې ونيســــو

ځــو به څو د راز د ښـــــاپېرى ورغـــوى ولولو
ورو، ورو به ددې ړنګې کيږدۍ ورغــــوى ولولـــو

ســــــترګې د شاعر ملنګ دي ژبه د شـــاعر ملنګ
غوږ ســه اوس به واورو نوې، نوې کيسې رنګ په رنګ

***

(شاعر ملنګ)

اورئ !د اوبو غرې راځي لرې څوک شپېلې وهي
هلته د ګودر غاړه کې غلې څوک سلګۍ وهي

خدای ته د سندرو په دعا لاسونه ونيسئ
دې د اوبو غرې ته د خيال غوږونه ونيسئ

دا د اوبو غرېنه دی د مېرې د حال ژبه ده
سوی اسويلی دی د نيمګړي وصال ژبه ده

راسئ دې ګودر ته ځير سئ دا رڼه هينداره ده
تاسو چې منزل ته رسوي دا هغه لاره ده

دادی انځور راغی اوس نو تاسو ننداره کوئ
پو په يو ها نورو ته ددې ناورين کيسه کوئ

***

(راوي)

پيره وينې دغه د شاعر ملنګ هينداره ده
دغې رڼې پاڼه کې دنيا د راز په لاره ده

دا مو د شاعر ملنګ د خيال رنګينه ژبه ده
وايي چې اوس ميره مو پرته په کومه تبه ده

(د راوي ملګری)

دا خو کوم زيارت دی ښکاري مړو سره سر سولو
لاړلو آشـــنا خپله کيسه خاورې په ســـر ســـولو

(راوي)

څه چې ورنږدې سو ښـــکاري دا د راز سرغوټه ده
هر څه چې دی دلته د ســــــــرو زرو ډکه موټه ده

دادی انځور خپله رانږدې سو د اوبو غږ ســــــو
اورې؟ د کوم چـــــا د ننواتو او توبو غـــــــږ سو

(د راوي ملګری)

دا خو کوم ملنګ دی ګوره څه په دوړو خړ ښکاري
ســــم دم دوزخي دی د دنيا په مخه پړ ښـــکاري

***

(خړ ملنګ)

راغلئ بختورو، زما ســــترګې خو هم څلور کړلې
دا د دنيا شــــپې ورځې مو ماته ســـم په اور کړلې

(راوي)

ته څوک يې او موږه ته په څه ســـترګې په لاره وې؟
ښـــــکاري چې راتګ نه مـــو خبر لا وار له واره وې

(خړ ملنګ)

زه د ګناهونو پېټي لاندې ستړى، ستړى يم
سم کنډر، کنډر کلى يم خړو اوبو وړى يم

ما سپک د ښايست ښاپېرۍ سپکه ياده کړې ده
ما د بدمرغۍ کړزه ډېره ښاده کړې ده

ما شرنګ د بنګړو ترنګ د سندرو غلى کړى دى
ما د بېلتانه د شيطان هر حکم منلى دى

زه سر په دنيا د دوزخونو اور لړونى يم
زه بس د تور سرو سر ته سم د اور پړونى يم

(د راوي ملګرى)

ورک سه سم خنځير يې ستا اورمېږ د ماتولو دى
زه ياره دا خړ خو له خبرو نه وتلى دى

(خړ ملنګ)

تم سئ خداى ته ګورئ زه د هغه راز سرغوټه يم
تا سو يې چې په لټه کې يئ زه هماغه موټه يم

راسئ چې د ميرې خورکۍ ټوله کيسه تېره کړم
ګوندې که لږ څه ها غم لړلې شېبه هېره کړم

***

ډیر ښــــه مې یادیږي یوه ورځ پلار ځــان له وغوښتم
ویل یې زویه غــــواړم یو درانه څه کې دې وپوښـــتم

ما د چمتووالي ګــونډې غبرګې پلار ته کېښــــودې
سرتړپایه غــوږ ســوم د دنیا ناندرې مې پرېښــودې

پلار ویل وایي چېرته کــــه منې د ونې ســــرې سولې
پوه ســــه چې ښوال ته رابرســــېره اند ښنې ســولې

دې ورځــو کې زما پـه زړه هم ســوچ کیږدی، وهلــې ده
ځکـــــه چــې زمـــــا د بڼ میوه هم رســـــــېدلې ده

خدای سته زویه نور له مرکو نه ســـتړی، ســـتړی یم
دغــــــــــو ربړارانو نه بس پوزې ته راغـــــــلی یم

وایم چې راځــــــــــه پدې په هاغــــــه آمنا وکـړه
بیا هم ټکنی سم زړه مې وایي نن ســــبا وکـــــــــړه

غواړم دواړه نن دغه درونـد پېټی دروند راښــکته کړو
خیال سره شریک کړو ســــــم منزل ته د لار لټه کـــــړو

زه وایم پلاني او پستانکي خان نه یې وا ړوو
دا د شاتو پېتې د (زمري) په وره کې وا ړوو

ته څه وایې زویه دا وروستۍ خبره ومنم؟
ستا په اند مانۍ نه دا کېږدۍ په نره ومنم؟

ما ویل پلاره سمه ده زما هم درسره هوکړه ده
ښکارې زمونږ مېنه کې بس دا د خوښۍ زوکړه ده

مور مو هم له دغه نیول سوي هوډ خبره کړه
ورو، ورو مو خبره د خوښیو رادبره کړه

مور ویل دا سې ښکاري کومه ټکه رالوېدو کې ده
زړه مې هسې شین دی دا ښادي په نه کېدو کې ده

ښکاري لارې ببله سوې ککۍ کجل نه ببله ځي
میرې ته څه پېښ دي له همزولو ډل نه ببله ځي

ډېره موده کیږي سندرماره لور مې غلې ده
ښکاري چا په غلا ترې د سندرو دلۍ وړې ده

زه به د لورکۍ د زړګي خوښه رادبره کړم
څه چې ورته پېښ دي له هغه به ځان خبره کړم

مور د خپلې خوښــــــې پاره لږ موده غوښـــــتلې وه
پلار ورســـــــــره دغـــه موده درې ورځې منلې وه

لا دوهم ماښــام وو چې مې پلار د ېرې ته وغوښــتم
څه وو؟ پلار غـصه وو، یربېدلم چې ترې وپوښـــــتم

غږ سو کښېنه، ما ویل کوم کوهي کې څوک زګېروی کوي
خدایه خیر کړې بیا مو په خوښــــېو څوک تېری کــوي

پلار ســــر راچت کړ دواره سـترګې یې سکروټې وې
خــــدای خبر له کــومه رالوېدلي کـــومې ټکې وې

شــونډې یې ورو وښــورېدې ویل یې چې بې پته سوو
نور د نارینتوب له مســـتانه آسه راښـــکته ســوو

لږ که چېرې تم ســو دا خـــبره ډنډوره نه ســــي
دا د بې ننګۍ څـــــبره مو خلــکو ته ښکاره نه سي

لاس او پښې مې سستې سوې وانې مې تښتېدلې وې
هک پک ومه واکې د خـــبرو رانه تللـــــې وې

پلار ویل دغه ســـپکه ننه شــپه له دنیا تېره کـــړه
ښې ښښـاني یې د عالــم له ذهنه هېرې کـــــړه

بیا به لـــه دې کلي له دې ســـــیمې پښې ســـپکې کړو
چېرته کـــوم راغـــــه کې به دا پړې ځـــبرې پټې کـــړو

خور دې درته ښـــیم چې یې ښـــــه ګـــــلان کرلي دي
هرڅـــــه دې ناولې د ګـــــــناه پـــه تول تللـــــي دي

چېرته به یې د ځـــــبرمه ځـــنګله څنډو کې مرداره کړي
دغـــه د پېغور ناره به ګـــونګه کړې کـــراره کـــــړې

سترګې مې تیاره سوې آسمان تندر مځکه اور ســـوله
خـــــپله نازولې خور مې نښـــــه د پـــېغور ســــــوله

بس هماغـــه شـــپه مې په مرۍ چـــــاړه ورتېره کـــړه
هــــا مسته هوســـــــۍ مې بېګناه له دنیا تېره کـــــړه

بله شــــــپه په خوب کې نازولې مـــیره راغللــــــه
مـــا ویل کـــــــومه حــــــوره د جنت له پیره راغللــه

غــــږ یې کــــــړو لالا تا خو به یو واري پوښــــــتلې وم
پته به دې کـــــــــــړې وه چـــې ولې کــــه ناولـې وم

دومــــــره به دې پوښــــتې وم چې ولې غلې، غلې وم
څه غــــم کومې ســـتونځې د ګـــونګو په بند تړلې وم

تا خو مې لا ډکې له ګیلو سترګې ونه لیدې
تا خو مې د ننګ او د پښتو سترګې ونه لیدې

بس شانه دې سم په پسته غاړه چاړه تېره کړه
سم دم ځناور سوې د خورکۍ مینه دې هېره کړه

ما به درته وېلې چې لالا خورکۍ دې ولې ده
هسې بېګناه د کوم تهمت غشي ویشتلې ده

دا چې تا ګناه ګڼله زه یې خپل قسمت ګڼم
ښه او بد دا ټولې بس تړلې په نیت ګڼم

ما به درته وېلې چې لالا کلکه رنځوره یم
نس کې مې دانه ده له دې شرم نه تروره یم

ما او تا خو دواړو په یوه تي خولګۍ اېښې وې
دواړو د حیا مزله کې خپلې پاپۍ اېښې وې

دواړه ماشومتوب کې پښتنې ابۍ تړلي وو
دواړه د پښتون پلار پښتنې مینې پاللي وو

هې ارمان پښتونه تا به یو وارې پوښتلې وم
څو مره که ناولې وم تا ولې به غوښتلې وم

اوس که لږ غېرت لـــــرې نو ثـه کفن راوبښه
لویشت قـــبر، یو ثلی ثه حـــیا د تن راوبښه

سم مې له سهار سره خورکۍ په عزت خښه کړه
سـیمه د قبره مې د ګـــــــلاب په ثلي نښه کـړه

بس له هغه وخته د خورکۍ زیارت کې دمه یم
خدای سته که شـــېبه به له دې ځور نه بېغمه یم

***

(راوي)

پېره دا ثه تریخ پای دې کیسې ته قسمت ورکړلو
لاس یې هم ونه رېږدېده چـا چې د کړو کر کـــــړلو

خدا ېزده ثومره میرې ددې وچ غیرت خوړلې سوې
خدا ېزده ثومره ښکلې سندربولې لاړې غلې سوې

ثو به په بېځایه ننګ ګلونه رنګ په رنګ سېځو
ثو به په سرزوري ضد ګتلی برم د جنګ ســـــېځو

ثو به لکه مچ د پښــــېمانۍ لاس په تندي وهـــو
ثو به وچ ګودر ته تشې باتې د منګـــــې وهـــــو

موړ د داســــــې میرو درونډ آزار په غاړه ګرځوو
ځکه د غړانده لمبو هـــــــار په غاړه ګرځـــــوو

خاورې به میندې نه سي چې سر باندې یې وشیندو
مځکـــــه به پیدا نه ســـي چې قبر پکې وکـــیندو

دا چې آســـــمان نه رالوېږي دوا د کومې ولــــې ده
ورونه چې پړ نه غـــــواړي د هغې پاکې جلــــې ده

زموږ میرې خو آن په مرګ زموږ د پګړو پت ســاتي
دا آغلې نجونې پت پښــــــتو لکه آیت ســـــاتي

د لړم ۱۷ مه ۱۳۸۵ لمریز لېږدیز کال



# برښنا ليک

قـــسم دی هـــــا زړه ونه مې زښـــت ډېره يادېږي
چې مـــــور به ويل پيريان پکې جرګې لره ټولـــيږي

چـــې ما او تاته جوړه ترې د مينې ســــــيپاره وه
د توت هـــغه شـــاغوټه چې له لـــرې راښــــکاره وه

ترې لاندې مو چې ټکنده غرمـــــه کې مېلمستيا کړه
شړومبې به تا راوړې وې او مـــا به ډوډۍ غلا کـــړه

ادې به په نارو د ډوډۍ خـــورئ ســـوه سترې ســـترې
خو زموږ نه د نانځکو کــــــورکي وه لــــوږه وړې

هـــغه ورځ دې يادېږي چې په ســـرو سترګو ژړل دې
مـــــېره مې دې نانځکــــــې رانه پټـــې دا ويل دې

ســــپېرو چاودو غومبرو کې دې اوښکې لارې، لارې
زما نه يې ورکې کــــړې وې ماشــــومې لارې چارې

ما پړنګ وهـــل او غبرګه مې له تا ســـره ژړا کـــړه
"سلګۍ" ســـلګۍ، سلګۍ کې مې د ستا سره سلا کړه

راځه چې نن پخپلو کـــــې نانځکې ســـــره وکـــړو
شاګی او ناوکۍ به ســو او نور به څــه او څــه کــړو

سلګۍ دې سولې غلې نرۍ شونډې دې موسکۍ سوې
دوه ســـــترګې دې باران باندې نمجنې توتکۍ سوې

ســـتا هوکړې سره سم مې ویل چې ځم بېرته راځمه
د ګل بابا له بڼ نه دنداســـــه درته راوړمــــــــــه

په لار کې مې له کــــوره ستالفۍ کاســـه کړه غلې
کې تشه مې کړه ټوله د بېګا شـــپې خیشته کـــړې

تا سرې په دنداسه کړې شونډې تورې دې وې سترګې
زما مخ ســـــپېره مېره وو ځلېدلې پکـــې ســـترګې

بیا خندا د ټیکرې دې اننګـــــو باندې کــــړه تېره
پدې دې ماته یاده کــــــړله چـــــاره رانه هـــېره

لســـــتوڼی مې په ناړو کړ او مــــخ باندې اخته سوم
ما ویل چې اوس به خو مره ښایستوکی او سیکه سم

تا کړس خندا کې ویل مخ دې تک سور لکه بیزو ســو

ما ویل ګوره دا ســـتا خو لکه حسن د درخو ســـــو
جـــوړه مو جـــوړه نه وه لا نګریزې خیشتې نه وې
ســـــندرې لا پیل نه وې او چا ډزې کـــړې نه وې

هلک نری چـــنار ته لا یو څـــه مـــهال وو پاتــې
چې یونا څـــا په غږ سو ، خدای دې ورکه کړه میراتې

مېره دې په کوڅیو کـــې منګولې کـــړلې خنبـــې
زما په ســــر او ډډو یې هـــم څپېړې کـــړلې یخې

همهغه مو بېلتون وو چې دا نن یې شـــلم کال ســـو
جومات کې مو د مینې چې د ږره ســـپېره دجال ســـو

اوس ښـــکاري چې دجال، د عشق ولیانو دی شـړلی
د مینې شـــپېلۍ نه زده، ښـــا پېریانو دی شـــړلی

ها تېرې ښې شـــېبې لـــکه پرون غـوندې رایادې
ته وایه ســــتا یادېږي که هـــر څـــه دي درنه پاتې

کېدای سي بیا دې هو کـــړې سره بېرته راژوندۍ سي
ها غلې او ماشـــومه مینه شرنګ وهي شپېلۍ سي

منم چـــې دا یورپ دی خو زما ســــره لا سته ده

څه داسې دنداسه چې د ها تېرې نه ښايسته ده
يوه د غزل ټولګه سيپاره زمونږ د مينې
کې نغښتې ده ماشومه نندارە زمونږ د مينې

راځه چې ها ماشومې دنياګۍ ته بېرته لاړ سو
دا دنګې ماڼۍ خوشې کړو کيږدۍ ته بېرته لاړ سو

خبر يم ها زړه ونه لا دنګه ده لا شنه ده
خو پرته زما او ستا نه يې ښايسته بشره سپېره ده

د کډې آس مې زين دی د دوهم وري په تمه
بس تم يم که په لور د وطن ځې راسره سمه

***

شېبې سولې کلونه برېښنا ليک ته په کتلو
ځواب کې دومره ځنډ سو چې مې ساه سوه په وتلو

موده د انتظار که څه اوږده وه خو خوږه وه
بس کټ مټ لکه سوځنده تودوخه کې روژه وه

ځواب کې مې سلګۍ، سلګۍ تر لاسه کړې سلګۍ نه
په برخه مې يوه نوا هم نه سوه له شپېلۍ نه

کمکۍ ژبه د مینې مې ماشـــــومه ګونګۍ ښــــه وه
له دې چتې ســــلګۍ نه ها ســــپېره ناوکۍ ښـه وه

د وري ۲۲مه ۱۳۸۵ لمریز لېږدیز کال



# د شعر ښاپېرۍ

کله چې آسمان کې سترګکونه وهي ستوري
کله چې په پاڼو د ګلابو پرښه اوري

کله چې له لرې د شپونکي د شپېلۍ غږ سي
کله چې ګاونډ کې مو د چا د سلګۍ غږ سي

کله چې کوم څوک ډیوه په لاس رڼا کې وینم
کله چې د مور پسې ماشوم ژړا کې وینم

کله چې پلو کې څوک د مات منګي کودړي
ژر، ژر ټولوي او په غاښونو چیچي زړي

کله چې سپېرې پښې د چندوړي کړې ګامونه
کله چې څوک وار ته کړي دوه لاسه سلامونه

کله چې ټالۍ وهي ماشوم د اوښ په بار کې
کله چې چا لاره ورکه کړې یې په ښار کې

کــله چې څوک اوښ په بډه کړي ســــــره له باره
کــله چې څوک لور ته شنه بنګړي راوړي له ښاره
کله چې د دار په ســــتنه څوک وهي څرخـــــونه
کـــله چې د ســـــــر په بيه سي د خــــوله نرخونه

کــــــله کومه پېغله چې غلطه سي ښــــکنځل کې
کـــله چې ســــنځل ګل جينۍ وټومبي اوربل کې

کـــــله چې ماشـــــوم رېبار خبر دوه ځلې وايي
کـــــله چې شاعر کومه کوچۍ ملکه ســـــتايي

کــله چې د پېغلو جنګ سي سپېنې لېچې اوري
کـــله چې په لاس د ورېمې ښکلی اوربل ښوري

کـــــــــله چې کجير وهلې زانه خوب کې راسي
کـــــله چې د چا د مينې هيله نيمه خــــوا سي

کــله چې شيدو پسې وچ موری ماشـــــوم ژاړي
کـــله چې څوک چا نه سپينه خوله په نره غواړي

کــله چې کوم سيند له وچکالۍ سي لارې، لارې
کـــــله چې د چا شــــونډې سي ولې په مرداري

ځو چې کـــوم غزل کې سې ښکاره تر هغه پورې
بس زما د شـــعر ښـــا پېرۍ ته مې په زړه اورې

د غوايي ۱۳ مه، ۱۳۸۵ لمريز لېږد يز کال



## دود

زړونو کې درزا ســوه چې د آس د ششنېدو غــږ ســو
والوتلې بڼې چــې د ورا د رســـېدو غـــږ ســـو

ســـــترګې د نتکۍ د باز لیدلې توتکۍ په شـــان
دا ســـې رپېدلې لـــکه باد کې د کیږدۍ په شـــان

هـــغه وخت وریاد ســـو چــې یې تره "غمی" وژلی وو
وروســـته له جرګې یې قـــام پدغه ســـلا سوی وو

بدو کې نتکۍ به زوړ چـــنار ته ورکـــوي تره یې
ظلم دی کبلۍ به خـــوله د مار ته ورکـــوي تره یې

دا خـــواره مـــیراث وه او د دود په بـــند تړلې وه
بس یوه روانه جـــنازه وه غـــم لـــړلې وه

میاشت وروســـته ها زوړ چنار د مرګ په سېلۍ پرېوته
تور د کـــونډتابه شـــال په کـــوژدنه نتکۍ پرېوته

اوس دغـــه میراث کـــبلۍ "انار" ته ودوي تره یې
وینې د "غمـــي" ددې پـــه نذر پاکـــوي تره یې

خواره ناوکۍ وه لکه پاڼه رپېدله چې
ښه د ګل غوټۍ وه شېبه وروسته رژېدله چې

څانګه یې په یاد وه چې په بدو واده سوې وه
کال وروسته واده نه له وهلو چې مړه سوې وه

پټه خوله وه ورا ناوې پخبلو پښو روانه وه
جوړه جنازه وه چې په سرو لمبو روانه وه

***

زوم وو له بهر نه را روان د وطن لور باندې
دې ته وو په لاره چې دعا وکړي په ورور باندې

وروسته رسېدو نه د دعا په ټغر کېناستو
دود سره څو ورځې د ژړا په ټغر کېناستو

دې ټوله موده کې په نتکۍ د بدو وار نه وو
خوار تنکۍ زړګۍ یې ستغو سپورو نه کرار نه وو

ویر موده پوره سوه یو ماښام وو چې ورو وټکېد
وروسته بیا کوم څوک نږدې کوټې ته په زور وټوخید

زړه د نتکۍ وښـــــــويېد د مرګ خوله پرې راغلله
لښـــــــته د ګــــــلابو رپېده ځيله پرې راغـــلله

ســـــــر باندې يې د چا د تاوده لاس تودوښه پرېوته
نور په ځان پوه نه ســـــوله په درز بې هوښــه پرېوته

کله چې په ســـــد ســـــوه نا اشنا غوندې مالت کې وه
دا ســــــې ورپه زړه ســـــوه ګنې مړه وه په جنت کې وه

هکــــه پکــــه پاتـــــــې وه د ذهــــن يــې وزر نه وو
هرڅـــــه بدل ســــوي وو په ســـترګو يې باور نه وو
***

غــــړ ســـــو زه انار يم ته زما د ژوند ملګـــــــرې يې
ســـــمه ده چــې قـــــام ماته په بدو کې راکـــړې يې

زه به تا هېڅکـــله ســــتا د تره په بدو نه نيســـــــم
دغه ناســــم ســــوي دود نه سترګو کې بس ښه نيسم

دا بـــد نه دی دا د بـــد مــــــينځـــــلو يـــوه لاره ده
کــــرکه په الفت چـې بدلـــوي دا هـــغــــه چـاره ده

دا دود خــــــو ســــپین روبو زموږ ولی دود مــــنلی وو
مــوږ وو چـــــې دا ولــــــی مو ناولــــی کارولــــی وو

ګـــوره چې پښــتو کې ستا پلو څومــــــره ښاغلی دی
اور د دښمنۍ ورونو کې وژني څومــــــره ښـــکلی دی

ځکــــه زه ګــڼم  د نور لـــــــه کلـــــي نه راغـــــلې يې
وينه چـــــې په مــــــينه مينځې ته هـــغـــه آغلــــې يې

لاس را کـــــــړه ملګرې ولی دود مو ببرته ولی کـــــړو
دا د دښـــــمنۍ او دا د بدو غــــــږ به غلــــــی کـــړو

راســــــه چــــــې په ګـــــــډه دغه هــــيله او اند وروزو
بس په مــــــينه مينـــه دغـــــــــه داغ لـــــــه زړونو وتوږو

ته ماته ډيوه يې پرښـــــــــــــته يې مـــينه مينــه يـــې
ته لکه کـــــوتره د ســــــــخي د زيارت ســــــــپينه يې

راســــه او زموږ زړونه هم ځان غوندې سپيڅلي کـــــړه
نور د ســـتغو ســـــپورو  د بدل غږونه غلي کــــــــړه

راســــــه زما د عمــــر غلي کـــړکي ته نوا ورکــــــــړه
شــــرنګ يې کړه شپېلۍ کړه دې مړه ژوندون ته سا ورکړه

ځه چې بې له میني نه بل څه ته ځان وزګار نه کړو
دا نیمګړی ژوند له هېڅ او هېڅه ځني ځار نه کړو

د وري دیرشمه ۱۳۸۵ لمریز لیږدیز کال



# زلزله

د زړګې کور يې را ويجاړ کړ زلزلې غوندې ده
دا زما مينه د کابل تېرې کيسې غوندې ده

چې لاس وروړم ريږدي رپيږي له رڼا جوړه ده
هر ځل له تېر نه لا خوږه سي د توبې غوندې ده

لکه درزا مې زړه کې اوسي نور مې تېښته نه سته
آن په لمانځه کې مې غلط کړي د کعبې غوندې ده

ته وا بې مينې جوړې کړي دي دوزخ ته لارې
زاهده ماته د ګلونو د لمبې غوندې ده

دومره نازکه ده چې آن وږمه پرې ورو چليږي
له وېرې ګوتې وروړی نه سم د ښيښې غوندې ده

د وخت منګل کړه هديره د ګربوان لارې، لارې
وروستنۍ اوښکه مې بې ګوره جنازې غوندې ده

تورتم کې ورکو مساپرو ته چې لار ورښيي
دغه سپوږمۍ نه ده دا بالکل د هغې غوندې ده

ملـــیاره خــــــدا یزده چې دا ګایه به ګلونه راوړي
بس تشه باته ده ددې مــــــهال جرګې غــــوندې ده

د لیندۍ ۱۲مه ۱۳۸۴ لمریز لیږدیز کال



# بیتونه

خدایزده کـــوم کجیر دغه کـــوتره ځـــورولې ده
چا یې د غـــزل غـــوندې ښـکلا ورانه لوستلې ده

دا خـــو نګه شـــرنګ نګه نغمه نګه ســـندره وه
خــدایې خبر په څـــه دغـــه بلبله غلـــې غلـې ده
***

ځئ چې د ټوپک شـپیلۍ کړو ماته د شپېلۍ په غږ
زړې د خـــندا وکـــړو پاڅـــو د لـــنډۍ په غږ
***

ګوتې وروړی نه سم چې نازک حسن یې رنګ نه سي
دغـــه نازولـــې د ګلاب پاڼو کــــې لویه ده
***

قند خـــــوږه د خـــولې د سوال ســـره تروه سوه
نارنجګله له حـــیا سپینو کې ســـره ســـوه

چې تر غوږ یې د کابل د بلبل غـــږ ســـو
په کوچي لالي کیږدۍ غوندې خـــوره ســـوه
***

که څـــــه هم چې بې تېغه به جهان په وینو رنګ سي
خـــــو بیا هم که راوګورې احسان به په ملنګ سي

***

څـــــو مې زړه د صبر په تار وګنډه
ســــــر نه مې د مینې خمار وځنډه

ووت تورو خاورو نه رېدی سو جوړ
هرڅـــــه مې خوړلن په ایرو ومنډه

***

بیا مو یو ستوری د ادب له روڼ مداره ووت
د عاطفې ســــرتور ملنګ مو له کتاره ووت

د مراد پیغکي یې رپیږي د پښــــــتو په ولي
تڼوکلی زړه ســــوی ځیګر له دې مزاره ووت

***

ښــــــکلې شوخ نظـــــر دې د حیا له تیکي وباسه
مخامخ راوګـــــوره د زړه چـــــــنار پرېووله

ســــــره اننګي ټاپی کــــړه د زلفو مچینوزغې ته
سپینه خوله دې ګاټی کړه ملنګ ملیار پرې ووله

***

سپین کمیس د حـــیا ناوې چـــا په وینو لمبولې
که کوډل کې دې د سترګو پېغله اوښکه وير وژلې

د لېمو حبش سرتېري دې مورچل کې ويده ښکاري
ګرد چاپېر ســـپينه خزه يې سرو لښکرو ترې نيولې

***

لا مې د سترګو په نغلو کې دومره اوښکې ستهدي
چې دې د مخ کابل په ځـــــل د رڼا ولمــانځمـــــــه

***

د زړه نغلـــــــــو مې چا په غشو د بڼو ويشتلی
د مخ کابل مې د رڼا نذر له ســــتورو غــــــواړي

***

د ستورو کور مې له شيطان څراغ نه نذر غواړي
د مخ کابل ته مې د زړه له نغلو نور نه رســــــي

***

ددې نتلي زړه کلــــه هيريږي ترمـــې اوښـــــکې
څک ، څک د کور په بام يې راڅځيږي ترمې اوښکې

***

مېلمه، مېلمه بانه دې لږ په وار رالېږه زړه ته
کوربه ته خـــــو لږ وار د هرکليو ورکــوه ته

***

کغ کړي ببره سي چې لاس ورو ړم
ليلا د کـړوکې چرګې لوبې کوي

***

ډېره موده سوه چې مـــو څنې غورځولې ندي
د اتڼ دوړې مو آسمان ته پورته کــــړې ندي

راځئ چې دا ښادي شريکه کــړو په مستو ټپو
قسم بې تاسو د **محفل** شېبې مو ښکلې ندي

***

هـــــر کله راسئ ما لېمې دي غـــــــوړولي لارکې
اې ښکلو ستورو را مېلمه سئ نن د نور په ښار کې

***

ځان نه مې بد راســـــي له خپلې تندي وشرمېږم
چې دي په سرو شونډو د خپلو شونډو داغ ووينم

***

نازکې په خــورو زلفو دې وار د لوبو راکـــــړ
کمکی یم دم مې نه زده دا منګري به تښ راکړي

***

خوږې ګناه ملـــــيار دې څه کوي او څه دې ساتي
ملا ته په لاس ورنه سې چې يو ځل به دې ګړت کړي

***

ما درته نه وېلې چې مـــــه راکــــــوه زلفې په لاس
دا ملا وزمه زړه مې شونډې له پېزوان سره خوري

په ښــــکاره جام، پټې توبې ماتوي نور څه نه کړي
بس يو همدومره دی چې هرڅه د قران سره خوري

***

يو څوک دی جام ښکاره او توبې پټې ماتوي
د حـــــسن آيينې روغـــــې رمتې مــــاتوي

***

چم نه د سپین روبو دې نیمګړې توبې وویستم
ته خو خدای وهلی وې زړه زه دې له ښې وویستم

تا باندې خو زهد لا د مخه حکم کړی وو
زه تورن له دې توره د ښکلو جرګې وویستم

***

که چېرې سمنګی چا په کودوړي بدلولای
نو ما به د اوس هرڅه په چیندوړي بدلولای

له پیله که د سترې ځوانۍ سترې راښکاره وې
قسم دی دا پیچومی مې په زوړي بدلولای

***

دا دی له تندې به بېغمه سو او جام به اخلو
مینه وروري به پالو یو د بل سلام به اخلو

د زه او ته تېغر به تول سي ځای به یي موږ ونیسي
نور به څوک نه وايي چې هلئ انتقام به اخلو

***

څانګې نګه ګل سه چې د شعر په شـــــور مې پوه سې
شرنګ وهه شپېلۍ سه چې په ټنګ تکور مې پوه سې

غاړه غړۍ راســـه چې د عشق په زور مې پوه ســې
خدای دې کـــــړه مینه چې د زړه په اور مې پوه سې

***

سو به د پښتون زړه بس د سترګو په جنګ نه سي
هسې په موســـکا باندې چاره د ملنګ نه سي

سوې وچې شونډې به له سواله په څنګ نه سي
څو چې سر تر پایه ستا د شونډو په رنګ نه سي

***

زه نګه آمین یم خـــو که ته چېرې دعــــا سې
ټول غـــزل، غزل یم خــــو که ته را ته نوا سې

دار ته دې منصور یم خو که ته ښکلې سـزا سې
زه به لولپه سم خو که ته چېرې ګنګا ســـــې

***

ښکلې پاس په زنه ولې سپین خالونه نه ږدي ؟
ځکه چې ساده مومن ته ثوک دامونه نه ږدي

راشه زموږ د ونو په لاسو کې غوښې شنې دي
چا وېل مســـلمان ته مسلمان بمـــونه نه ږدي



# د مینې ډالۍ

لیلا زمـــــا د مینې ډالۍ ځان ســـره ساته
په دام کې رانېولی په ایمـــان ســـــره ساته

د ښـــکلي مخ په پانړو دې کوم بد نظر پرېنوځي
ســرې شونډې روو سترګو نه پېزوان سره ساته

د شـــــوخ یاغي نظر سره ورېښمینه حیا ښایي
بس هر وختې شیطان له مسلمان ســـره سـاته

د نرمو شـــــونډو بیه له یوه ســـــره وانوړې
د تېرې شپې واده دې د جانان ســـــره ســاته

د مرغومي دریمه ۱۳۸۵ لمریز لېږدیز کال

# چل

جنګ د ترورېمی ته څو رانه ودروئ
دې د وخت لیوانو ته شپانه ودروئ

سیال به سئ د سیالو سرکتار به سئ په نره
بس یو واړې د غه پښتانه ودروئ

دا لیونی زړه مې تل د سترګو جنګ ته کاږي
مړ چې سوم په قبر مې بانه ودروئ

دا ولس واکي نه ده دا ښه چل د تالان دی
څو ګونګي، څو روي، څو کانه ودروئ

د سلواغې اوومه ۱۳۸۵ لمریز لېږدیز کال

# غزل

په مست حسن چې سیوري د زیړي مازیګر خپور سي
هر څه غزل غزل د تخیل هنر مې نور سي

تور خال یې د نری ورو څو تر منځ مینان بولي
کټ مټ لکه بلال چې د آذان په وزر سپور سي

دې میرې دښایست ته برخې داسې څه ورکړي
په لید به یې د حسن انځورګر خپله انځور سي

که چېرې دې ښایستوکې نه پلو له مخه پریوځي
د ډېرو د ککیو رانه ستوري به تک تور سي

د حسن خدایه داسې څه ورپېښ کړې ویش د می ته
چې زه په جام نسکور سمه یا جام په ما نسکور سي

قسم دی د ملیار په شان به ورېږي تول ماره سي
که چېرې د حسنونو ذکات ویش دلته کې زور سي

د سلواغې لسمه ۱۳۸۵ لمریز لېږدیز کال

# غزل

څه وو ایم ستا مینه کې ځومره کړېدلی زړه
ښه وه د سترګو خو په غشو لګېدلی زړه

تېره شپه یې بیا له ګړنګونو غورځولی وم
ځومره په زاریو مې له جام نه ګرځولی زړه

هره شپه په ما پردې بړستنې لټوي روی
څنګه چې سهار سي بیا له لوړې بوټ وتلی زړه

شیخه ته او خدای که په رښتیا راسره نه وایې
ته هم ورته پړ یې که دې چېرته دی کړلی زړه

خدایه که دا حسن دې په یو ځای کې غونډ کړی وو
ولې به شینکړ وو ور په ور به ګرځېدلی زړه

سترګو کې یې ساتي نازوي یې په سرکو شونډو
داسې ښاپېرۍ باندې ملیار ملنګ بایللی زړه

# غزل

خبر سوم له دې وروستــــه به خيرات وركوي ښكلې
هر كال به د ښايست په تول ذكات وركــــوي ښكلې

الله دې خير كړي بيا كوم د خالونو راوي مــــــړ دی
چې نن غوټۍ غوټۍ خندا په ســخات وركوي ښكلې

اشنا دې پســرلي كې د ســــــخې مېلې ته نه ځو
همدلته د خوږو شـــــونډو نبات وركوي ښــكلې

درځه چې دا د ســر بيه وركړو ســـاده عقله
بدل كې يې د شـــونډو ماله جات وركوي ښـــكلې

د مينې خدايه داسې زيری داسې ځــــه رازده كـــړه
و كوم ته چې د شونډو سر سوغات وركوي ښــــكلې

ويرېږم چې ســـاده كوركی مې بيا بدرنګه نكــړي
د ســــر په بيه ور د سومنات وركوي ښــــكلې

ملـــــياره تږی زړه دی د ازل وږی موړ نه ســـو
د حـــورو چم كه څومره سات په سات وركوي ښكلې

# غزل

چېرته که د لوی انځورګر سترګې په تا پرېوځي
هيښ به سي چې دا د حسن لمر به په چا پرېوځي

هر توری يې ماته بس دعا د پير بابا ګرځي
کله چې دې سرې شونډې ليلا په ښېرا پرېوځي

ښه دی چې سندرې نه درځي تا ښايست ميرې ته
ستوني د شپېلۍ نه به آيت د نوا پريوځي

نه چې ستا له لاسه بخته بيا روژه په خوله سولم
ويره ده سپوږمۍ د دې اختر به په ما پرېوځي

ستا وينا مليارهٔ ډبرو پړو نه زيندۍ اخلي
کټ مټ لکه غږ د معافۍ په سزا پرېوځي

# غزل

ســـــيوری ته د لمر له څـــانګو پاڼې غزېدلي
تا چې د کنډو له ســـــر نه ما ته را کـــــتلې

لارې لارې تللې رڼې اوښـــکې دې په ښکلي مخ
چا دې د ښایست ســـــپپاره ورانه وه لوســتلې

زما ننبی د شـــونډو وه او ســـتا د غاړې کرښې
ځـــکه ســـپينې پاڼې دې د حســـــن رپېدلې

آن د شـــونډو پل ښکاري په سپین نازک بدن دې
خدای خبر د حسن خاوند څـــه کې يې مينځلې

ســـتا له برکته ډير په سپینه ږيره مست ســـــول
اې د نشې ميرې ته له کـــــــومه يې راغلــــې

# غزل

په خوب کې ښاپېرۍ وینم دیوان مې ویښوي
بس شونډې رانږدې چې سي پېزوان مې ویښوي

چې سم جوړه ګومبزې د ژوندي زیارت سي ډډې
رامات مې تاویزونه سي پېریان مې ویښوي

ښکاریږي له ګلمخو نه همدغه مې قسمت سو
چې واورو کې ویده سم او باران مې ویښوي

زاهده ستا په دم مې په یاغي زړه څه ونه سي
ښیښه چې چېرته ووینم ایمان مې ویښوي

له کله نه چې ما د زړه منلې ور ته پړ یم
ویده په اوداسه سم خو شیطان مې ویښوي

رندانو راته وایئ شېخ چړي اوکه زه ګرم یم
چې سم په جام ورپریوځم آذان مې ویښوي

ملیاره یو څو پاڼې د سنځل ګل ورته ښې دي
دې درد ته چې ریښې، ریښې ګریوان مې ویښوي

# غزل

د خیال په ترږې للمه مې وریږې غلې غلې
یوه د هسکو میره د اوبو په شانې ولې

څه نغوته ده د مینې څه غزل څه توتکۍ ده
څه د نګه سارانۍ کوچۍ کېږدۍ نه راوتلې

هغه چې تش په یاد یې زما ژبه سې آغلې
بس کټ مټ د ماشوم مینه ده دومره ده سپېڅلې

احساس مې د غزل راتخنوي د ناز په ګوتو
په زړه مې وروي د پاس ګودر د غاړې ولې

په کومو کې چې زانګي لیونۍ شپې د مینې
هغه چې دي د مستې غنمرنګې په رنګ ښکلې

نو څنګه به د لمر په تال کې نه زانګي نوا مې
چې دا سپې ګلورینې نازنینې ده پسوللې

# ولور

ښاپېرۍ ډېر ډېر مې زړګی تنګ دی
د ګودر غاړې پسې مړ مړ یم
دا چې زیارت نه دې بې برخې ګرځم
د مینانو خدای ته پړ پړ یم
سمه ده دا ځای د حسنونو جنت
خو پدې ښکلو مې چاره نه کيږي
دې کې د ستا د خولو عطر نه سته
پدې هوا مې ګوزاره نه کيږي
***
دلته رنګونه دي خوندونه دي ډېر
خو د حیا پسې مې زړه وتلی
تل مې خیال کې دا سې ګرځي ګلې
چې مې مین نظر په غره ختلی
چېرته کې لرې ځوک شپېلۍ غږوي
د سوي زړه له تل بړاس باسي
ورشو د دنګې غنمرنګې جینۍ
د هر ځلمي د نظر آس باسي
***
ګلې زما ترږې سترګې ترږې ګرځي
پدې ببشرمه جلال ډ کې نه سي

خدای دې په خاورو باندې نه ډکوي
ځو ستا د تڼدې په خال ډکې نه سي
خو اوس مې ملا د همت ټینګه ساته
بس یو ځو نور رکاته نفل وکړه
لږ دی چې بیه د ولور پوره سي
نور د بېلتون کوډله ورانه ښکاري
کله مې بار ده دې نږدې ورځو کې
درځم په سرباندې دې شال اچوم
ماشومه مینه په بل ډول لمانځم
د زړه څنار کې درته ټال اچوم
د پیربابا په توغ په خپلو لاسو
زما په نوم یوه ریښکۍ وتړه
هلته کې لپه د دوا پورته کړه
زه به له دې ځایه آمین پرې وایم
بس دغه سوال کوه اوږده لاره کې
د لوټمارانو په داړه وانوړم

۱۳۸۲ لمریز لیږدیز کال د وري ۲۱ مه نېټه

# غزل

ته مې چې لیدلې یې د ژوند مانا مې بله ده
بس د زړه په ژبه مې دا ستا د یاد بدله ده

شکر ستا د مینې د آیت په اوبو ولی سوم
ته مې چې قبله سې عقیده مې تل تر تله ده

خدای قسم په غلا یې خوند له شاتو نه تېری کوي
سره غوټه د شونډو دې خوږه لکه سنځله ده

ټال کې د خیال ځکه څنار څنار غزل زانګي
دنګې غنمرنګې قد دې سم د ګلو وله ده

یو ځلې مو پرېږده خوله په خوله سو بیا چې هر څه کړې
عقله د تاک پېغله ډډې شونډې کله کله ده

زه یې ونه کړم ته یې ونه کړې ملا خو لا پرې غوږ ندی
مینه دې دنیا کې پیدا کړې خدایه څه له ده

ستا کتاب که مست د مینې شېخه چېرته پړ ګڼې
پوه سه دا خوږه ګناه مې کړې څو څو ځله ده

# یوازې

لاره کږلېچ ده ګلې خبر دی یو څـــو ګامه راســـــه
مزل مې ستړی دی خو ګوره تر مابښـــامه راســـه

پدې پوهیږم تر قیامته څـــــوک د چـا مل نه یي
بس دومره وکړه چې د ژوند تر وروستي جـامه راسه

لا مـــو خبره په ســـــــلام کې ده ولاړه ګــــوره
ســـــــلام پوره کـــړه د ګډ عمر تر کلامه راسـه

مــــــلګرې ګـــــوره تروږمیو دې زړګـــی تړلی
واده پوره کړه اوس راغـــــلې یې تر دامه راســـه

یو څـــــه به زه په زړه کې تېر کړم ته آمین پرې وایه
یو څــــه دې ته نیت ســاده کـــړه له ناکامه راسه

راځــــه چې تېرغـــوندې له یو بل نه ځاربږو ګلې
مرګی بڼو نه رانږدې ښـــــکاري ســــلامه راســـه

قـــسم چې ســـاء مې یې بې تا مې ګذاره نه کیږي
د مینې لمونځ مې قـضا نه سي روڼ امامه راســـــه
د غوایي شپاړسمه ۱۳۸۲ لمریز لېږدیز کال

# رښتیا

یوه خبرد نازولې لیلا
پښو نه مې تاوه ده ځنځیر غوندې
چې نن سهار یې راته وویلې
داسې مې بد ایسې خنځیر غوندې
له هرچا هرچا مې ګیله خو یو
له ګرانې مینې مې دا هیله نه وه
قسم چې زب زب ستړی ستړې یې کړم
داسې درنه وه د شوګیر غوندې
ما ویل چې زړه مې ښه پر ځای تړلی
له دې سودا به څه توښه وتلم
د ژوند انځور کې حقیقت وه راته
هغه هم تته سوه تصویر غوندې
که چېرته خوب یې د خوبونو خدایه
ددغه تور خوب دې لمن وسېځه
سمه سمسوره یې کړه رنګه راته
د رهبرانو د تدبیر غوندې
د اوس لپاره مې توبه ده تربنه
نور به یې نوم په مینه وانخلم
خو لکه ساء مې ده د زړه درب مې ده
زه لا مرید یم که سې پیر غوندې

د مینې خدایه له قلم دې ځار سم
ماته یې څه خوارہ رنځونه کښلي
ښکاري د ټنډې کرښې ورانې تللي
د خړ کابل سوي تقدیر غوندې
د ملاډوله دجالانو کړنې
او د نازولو دا نخره یوه ده
د مینې باز مې راته مړ ښکاري
د تور او سپین منځ کې تو پیر غوندې
هره ککره دې خپل اند روزي
هر څوک دې خپل خپل کوناتې ګروي
ښیښه مې خوښه ده قصاب خو نه یم
د ترهګرو د تکبیر غوندې



# غزل

پام کوئ شړې ببرته وړې نه سي
خدای مه کوه ډوبه مو بېړې نه سي

دومره مو په اور د کرکې مه سېځئ
بس دی سره سکروټه شنه نړې نه سي

خیال ساتئ چې دا خړه جونګړه مو
بیا د کوم ښامارد خولې مړې نه سي

نه چې ګاړګوتي پیکي ببقدره سي
پام چې یې لیلام ټیک او دړې نه سي

ډېر ګرم به په وړه سزا ولمانځو
چبرته که نیمګړې دا لړې نه سي

زما د نظر آس به کې ونه تړې
څو چې دې زړه جبل زلفې کړې نه سي

عقله راځه یو ځل د زړه ومنه
ګوره درنه تبره دا ګړې نه سي

دومـــــــره يې د تورو په ځل ولمانځه
څو چې درســـــره غاړه غـــړۍ نه سي

اخ به د ملـــــــيار د زړه ونه وځـــــــي
تاو دې له کمڅو لکه څـــــړۍ نه سي

د غبرګولي شپږمه ۱۳۸۲ لمريز لېږديز کال



# غزل

له مستو سترګو يې سودا پرېوځي
خدای خبر پړه به يې پر چا پرېوځي

ماته مې سوی تندی ښه مالوم دی
دا آسماني ټکه پر ما پرېوځي

نور يې په کړې ګناه ونه نيول
زما په سوچه ثواب سزا پرېوځي

ښکاري له موره يو تورمخي پيدا
چې تل مو برخه پر ژړا پرېوځي

موږه دجال ځان له امام نيولی
ځکه دعا راته ښېرا پرېوځي

جوړه کيږدۍ مو ستړې وترې سوله
او د شپېلۍ له خوله نوا پرېوځي

# غزل

که چـــېرې سین نه یي په څاڅکي ګوذاره کوو موږ
بس او ســــپنځړي یو په ښک د زړه چاره کــوو موږ

مه کـــړه قسم که به دې شـــونډې سلامتې یو سې
چـــا ویل ګونګي یو د نادودو ننداره کـــــوو موږ

موږ مینان یو آن جـــګړه کې نوم د مینې اخـــــلو
پیل هره چاره د ښایست په ســــېپاره کوو موږ

خال مو امام دی د سـجدې ځای مو محراب د وروځو
او دس په ډول او لمونځ په غــــږ د نغاره کوو موږ *

دا یو قلم لرو ښـــکر نلـــــــرو له زړه نازک یو
داســــې ونه ګڼې چې هسې نظاره کــــوو موږ

* له ډول ښـــخه موخه د غـزا ډول او له نغارې ښخه موخه د وطن د آزادۍ لپاره پر دښمن د چلېدلې ماشینګڼې غږ دی.

# غزل

څوک چې د مینې مستي سر کې لري
د سـر ښندنې اور ځـيګر کې لري

چـا چې وي عـشق لکه آيت منلی
په دې دنيا حـورې وزر کې لـري

زړه چې له هـره بريده اوړي پسې
ښـا پېرۍ دا سې څه نظـر کې لري

هلته که شـېخه يو څه ستا سره يي
غلمان به څـه شی په بستر کې لري

دا چې له شعره يې سـکروټې اوري
کوم ليونی ارمـان ټټر کې لـري

ته يې سـجدو او شوګيرو کې غواړه
ملـيار يې بس د زړه پرهر کې لري

# موري

د زمزم په شانې ولې
د زيارت غوندې سپېڅلې
ماته هر څه نه آغلې
مورې ورځ دې بختوره
***
ته مې دم ته مې قدم يې
ته مې ژبه د قلم يې
اې نګه نګه سندرې
ته پايښت ته مې عدم يې
***
ته د خدای غزل يې ښکلې
کټ مټ ګل يې د سنځلې
ټول عالم ته نازولې
مورې ورځ دې بختوره
***
که دا ستا شوګېرې نه وې
دعا څه که ښېرې نه وې
که دې ګوابښ او سکونډل نه وو
د پښتون به دېرې نه وې
***

ته له نوره يې راغلې
خدای په ښو يې ارزولې
يې زما زړه کې کرلې
مورې ورځ دې بختوره

***

اوس مې هم منډه تر تا ده
خوږه غېږ دې زما پناه ده
که دې چېرته زنګون نه يي
خدای سته ژوند مې ټول ژړا ده

***

ما له هر څه يې منلې
تا مې مينه ده پسوللې
اې زما د دمې ولې
مورې ورځ دې بختوره

د غبرګولي ۲۳مه ۱۳۸۲ لمريز لېږدېز کال

# مور مړې

د نور کوډله مې تیاره، د رڼا نذر غواړي
خو د خواست لپه یې ړنده ده
او دا هم نه وینې
چې د زړه سوي په نوم ګاونډ ورته د لمر پر ځای
شیطان ځراغ ورکوي
او د سیندونوله ها پورې غاړې
راغلې خړې خړې شوبلې
دا د سولې مارغان
ددې جونګړې زړه ته داغ ورکوي
خدایه تر څو به ستا د نور چینې په ما وچې یي
خدایه تر څو به شنه منګي رانه په نذر کې وړې
دا نذر پای لري که مورې مور مړې
بس بلهارۍ ته هست یو؟

# غزل

ته یې شــــــمېره پیره څو روا څو ناروا کـــــوم
تور امـــــام د خال پسې په مینه اقتدا کـــــوم

ښــــې زمــا د برخې د دوزخ لمبې غړاندې کړه
خدایزده شــــېخه دا څوره ګناه څو ځلې بیا کـــوم

د نګې غنمرنګې او د رز او ښــکې مې خوښې دي
څومره درته ووایم هم ها کـــوم هم دا کـــــوم

مخ غوندې دې ډېر له زړه نازک یم ښبرا نه راځي
ته مې په ځیګر وله او زه درته دعا کـــــوم

خیر زمـــا امام خــیاله ته که یې کافـــــر د عشق
زه خـــــو مســــلمان یم پېلامه په بسم الله کوم

# غزل

د هېڅ بدل کې خوږ اشنا رانه څه نور اخلي
بابا ! له موږ نه ستا د کړې ګناه پور اخلي

خدا ېزده چې بخت به دې میراث مېنه په برخه راکړي
خو د مرګي په پلمه زما نه ختين کور اخلي

دا سې مالت کې د ژوندون پېتې پر سر ګرځوو
چېرته چې روي ګورګتي خاورې د ګور اخلي

لږ چې ستا وړ سزا مو زړه کې څه خوږه غوندې سي
دا نه غوښتلې نه بللې په څه تور اخلي

قسم چې سترو منډو تړو ستړی کړې یم نور
څوک په سکون رانه د غبرګې دنیا شور اخلي

مور مړی زړه به مې له دې بزمه بې برخې درومي
له ډېرې تندې له ساقي نه جام نسکور اخلي

ښکاري د دې دنیا تورمخي به لا جګ سي هلته
خال د تندي لره جنت کې حورې سکور اخلي

کړې سودا مو د دې وخت سره په ورانه اوړي
مودې سوې ساندې راکوي او تېنګ ټکور اخلي

د سپیني خــوله خوند یو په غلا بل په رضا کې پټ دی
کـــوم لیونی به څک د ســـرو شونډو په زور اخلي

د چنګاښ اولسمه ۱۳۸۲ لمریز لېږدیز کال



# غزل

زړګيه وروسته پوه سوې په حساب د تورو سترګو
له لاســه مې وتلی اوس کتاب د تورو ســترګو

چې چـــم نه د تنکيو غنمرنګو تږی وځــــم
په غــــاړه مې اخستی کوم عذاب د تورو ســترګو

قســم دی چې د ښـــــکلو حسن دومـــــره يم ځپلی
په ســـــترګو ورکوی نه سم ځواب د تورو ســـــترګو

بس دغــــــه مې راتګ دی د ببلتون په مـــــز له وځم
د ښـــــکلو ميرې راکــړه لږ ثواب د تورو سترګو

غــــزل نه د ملـــــيار ځکه ولاړ بانه راوځـــــي
هــــر توری يې مينځلی په درياب د تورو سترګو

د چنګابښ ۱۸مه ۱۳۸۲ لمريز لېږديز کال

# شړومبه

دلته لا مير د ميدان روی ټوپک
دلته خبرې لا په تول کيږي
دلته لا ژبې د رښتيا ويلو
نګه سوګند لره جوګه نه ښکاري
دلته د حق خبر زر وارې خلک
د سترې ذهن منداړو کې شاربي
خو کچ يې شيندي د خيال کوڅو کې
تشه شړومبه وړي ولس ته نيسي

د چنګاښ ۲۱مه نېټه ۱۳۸۲ لمريز لېږديز کال



# غزل

د مینې په آیت کافـــر مـــې یار نه سي کیداى
هـــغــه چې یې خرڅ سوی خریدار نه سي کیداى

کـــاروان دی د لونګو او رانه بانه یې ســـــاتي
ناولی مـــــو ددې یون ســـــرکتار نه سي کیداى

نږدې ده ورځ رڼه ســــــي وړ ناوړ ســـــــي رادبره
دا مـــــه ګڼه تیاره کې د څه شــمار نه ســي کیداى

قسم هـــــره نادوده دې په وړه ســـــزا لمــانځم
پښـــــتون یم په بدل کې مې تلوار نه سي کیداى

څـــو ځلې مې په ټینګه غبږه لمانځي دنګه پوه ده
چـــــاره د تږي زړه مې په یو وار نه ســـــي کیداى

ملـــــیار ورته منصور دی هره شپه پکې زنګیږي
چا ویل کـــــړې د زلفو چېرې دار نه سي کېداى

د چنګاښ ۲۴مه ۱۳۸۲ لمریز لېږدیز کال

# غزل

نن ډېره ستړې ورځ وه خو په نره مې کړه تېره
کړې مې د لاسونو ښاپېرۍ نه کړه چاپېره

سپوږمۍ د سرو تبۍ سوه او پوره زموږ نړۍ وه
د حسن په دنیا کې دنیاګۍ وه رانه هېره

د دیو اورمېږ مې مات کړ د ښامار منتر مې پوخ سو
د مینې سپاره مې سوله زده بې زور او زېره

بېلتونه لاس دې خلاص تېره دې توره پدې پوه سه
هرڅه هرڅه کې یو سولو موږ پرته له کوشېره

دا نن صبا به ګل سي نور به زوزو ته ځای نه یي
کرلې د بوسې غوټۍ مې ووتې له شمېره

اوچت به یم چې یم ستا د ښایست په آیت ولی
د مینې سپین مومن ته له دجاله نه سته وېره

د چنګابښ ۲۴مه ۱۳۸۲ لمریز لېږدیز کال

# غزل

زه جـــل وهلـــــی وم هــغــه وه د باران بلـــــنه
مــــا خــــو به خود په زړه منله د ایمـــــان بلنه

غــــــزل مې وېلې له ماښــــام نه ملا بانګــه پورې
د ســــپوږمۍ وړانګو کې وه نغښتې د جانان بلنه

ماته د رز د لور ښـــيښه کې مخ د يار ښـــــکاريده
هرڅــــو که خلکـــو ورته وېلې د شـــــيطان بلنه

بيګا شــپه خولې ته يې د شونډو په پل ځکه ورتلم
مــــا اورېدلې وه قســــم دی د پېزوان بلــــــنه

د يارکافـــــر حسن او زما مومن زړه هسې سوځي
يا به مــنم يا به مني د مســــــلمان بلـــــــنه

د سـپين او تور په نوم ستي زړګۍ به دانګي ورته
که په رښتينې چـــېرې واوري د انســـــان بلــــنه

يارانو څـــــه وايئ د کال روژه کــــړو ماته که نه
امام مو نه ســــــته چې خــــپره کــړي د آذان بلنه

ملـــــياره لاس راكـــړه له دې سوي مالت مې باسه
نه چې سي ســــــــــتړې په بللو د كــــاروان بلـنه

د چنګابن ۲۶مه ۱۳۸۲ لمريز لېږديز كال



# غزل

د ترسا ساقي دی بزم څوک به شپه کراره یوسي
شور قسم کړی دا سر به یو ځل بیا تر داره یوسي

د ځلمو اوږې سوې ماتې ستوري تت سول د یارانو
باد به ما پښې څښېدلی نن له دې بنداره یوسي

د ارمان ببړی کې ناست یم اې ویده بخته راپاڅه
ګوندې بیا مې تندی ګل سي او منزل ته لاره یوسي

داسې سُر داسې نوا داسې لی داسې څه را پېښ سي
چې شپېلۍ مې له کیږدۍ نه د سپوږمۍ تر ښاره یوسي

زرکه میرې دې ګاونډ ته لږ ذکات د حسن باسه
نه چې باز د هسکو څوکو تا لدې کتاره یوسي

دې مور مړې د سر ویرې زموږ خبرې ټول په تول کړې
بس نږدې دی چې آن غږ مو د سته غلو له ډاره یوسي

د زړه آس عقل تړلی د ښکلا ورشو ښکاره سه
چې د غره مسته لټکه دغه لال له ماره یوسي

نظر مات کـــړه نازولې چې لښـــکر لښکر باڼه دي
چېرې خـــدای مه کـــړه سـندره د رباب له تاره يوسي

زما د عـــمر شــــيخي واخله د غـــزل د بڼ ملـياره
يو څـــو داسې توري راکـــړه چې بس زړه له له ياره يوسي

د چنګاښ ۲۷مه ۱۳۸۲ لمريز لېږديز کال



# اوربند

د غـــزل توري وري دي ســتا د حسن ايلبند ستايي
دا ورشــو به رنګه نکړي د ښايست ګوتې يې پيايي

ارزولـــی د نور ګــــــوتو دغــــه ولـی او نتلــــی
ځکه زه ورســــــره هوکـــړم زړه که هرڅه راته وايي

د خيال ښــــا پېرۍ ناســـته ده زما د عقل چـــم کې
ما لســـتونې دی ورکړی بس چې هرلورې مې بيايي

دا د ذهن ياغـــي آس مې دغــــه پړي ته رام نه ســـي
زه که حـــــوره تربنه يوسـم نو غلمان به يار د چايي

شېخه راسه سوله وکړو نور زمورِ منځ کې څه نه ستِه
ما په زړه کې دی موندلی ها دنيا دې ټوله ســـتا يي

دا زمـــا د غزل ســـترګه د ښــکلا چينې مينځلې
زه په هرڅـــه کې يار وينم دا وينا ما ســـره ښــايي

د چنګاښ ۲۸ مه ۱۳۸۲ لمريز لېږديز کال

# غزل

زړه مې ترې دی په څک کې دریاب اخلي
د الف ځای کـــــې د حسن کتاب اخلــي

زمـــــوږ تکــــبیر د ترهګــــرو تکبیر ندی
چـــې د نورو په ژوندون به ثواب اخـــــلي

چـــې توبې راماتوي په ســــر د شـــونډو
یار مې لمــــــر دی د بخـرکي به آب اخلي

دومره ښــــــکلی خو به کله داسـې وکړي
چې د یو څپک ژوندون به حســــاب اخلي

زورور مـــــو ځکـــــه ډډې خېټې ګـــرځــي
دلته لا ډنګر وزګــــوړي قـــصاب اخلی

ملـــیار څـــو ځلې د مار له خولـــې وتلی
خامخا د یار له خولې به ځــــواب اخلـي

د چنګانښ ۳۱مه ۱۳۸۲ لمریز لېږدیز کال

# غزل

دا تا چې سرې منګلې په ښېرا ورته نیولي
همدې دې په ښایست ولي ناولي ډېرتړلي

هر څو که نظر مات له دې ځلمي سرونه ځار سول
خو دنګې ښاپېرۍ حسن دې بیا دیوان بللي

ګودر به څنګه وچ نه سي اوبه به ولې نه مري
چې دلته د نظر غشو شینکي منګي ویشتلي

د زړه حال مې چې وویلې ښایسته سترګې دې مړې سوې
بانه دې پښتانه غاړه غړۍ سول غلي غلي

مولا دې خبر کړي نه چې د کوم باز خولې ته یې ورکړي
په غبرګو توتکیو تورحبش دي ټوکیدلي

نخرې دې د سپرلي ورېځې د زړه په للمه اوري
د نور مستو چینو نه که جنت نه دي راغلي

مزار به مې په پېڅکو د ټیکري خامخا لمانځې
دا دود دی چې رانه وروسته له مرګه سي ښاغلي

تندیه خدایږو ســــتا ســجدې که څاڅکی باران راوړي
شــېبه  مخکې پدې تکبیر چا ســـپین کبان وژلي

اوس هرڅـــه چې پېښـــیږي د ملــیار زړه یې منلې
یو څـــک ته دې د شـــونډو  جـــنتونه درتللي

د زمري ۹مه ۱۳۸۲ لمریز لیږدیز کال



# غزل

دا کلی ړنګ ښه دی د مینې لیونی نه لري
دوی په جامونو وېش د می کوي منګی نه لري

دا خلک ځکه له ګرېوانه له لستوڼو تښتي
دلته کې خړه زرکه ځاله مار سوری نه لري

خدایه درځار سم واک د وخت دې چا ته لاس کې ورکړ
خو ځنده ثلي دي بنګېړي خو زړګی نه لري

دا ثووم ځل سو چې د شنو سترګو نظر یې وهي
ښکاري ښایسته مخ د لیلا سم سپېلنی نه لري

پښتونه ښکاري چې دوی ستا د عقل ځل هېر کړی
لا هم ګڼي چې خر وګړی به مغزی نه لري

د خدای غزلو یې برجونو ته اوږه ورکړې
چا وېل شاعر زړه کې مېړه نه سته سړی نه لري

ماشوم ریبار مې چې سلام په منډه منډه وروړي
د قصاب لور ده خود کور په وره کې سپی نه لري

ملـــــياره ســــر ګوذار ته نيسې د ګوهــــر په تمه
خــو د اشـــــنا ويشتلي ګاټي دې غمی نه لـــري

د زمري ۱۰مه ۱۳۸۲ لمريز لېږديز کال



# غزل

دریادېږي له مالت مــــو چې وتلــو یاران یو یو
ماویل تم ســه تا ویل ځمه وربدلــــو باران یو یو

چې مشال ځـــاروان موومړ د تیارو په تورو غشو
مســـــاپر په بېله لارو بېلېدل له کـاروان یو یو

عمر تېر ســو له ســتار نه د چینو زیرو بم ورک دی
د اوبو ابی لا شــمېري بم ویشــتلي کبان یو یو

که څه زړه قحطی وهلی په خـروار به یې مورنه سي
خو اوس ښــه ده را رســېږي لږ تر لږه جانان یو یو

د ملالې او ناهیدې د پوښــتنو وخت به راســي
د ټیکــري ناولي غله به راکاږي له ګــریوان یو یو

د ســـــپېرې رڼا له وېرې ترهیدلي به راټول ســي
دا رښتیني به شرنګی ســي خیر که اورو اذان یو یو

زه د خپل زړه ته د خپل زړه آیینو کــې اشـــنا وینو
شـــېخه ما در شـــریک نکړی تېروو به ایمان یو یو

د پښـــو ښـــکالو يې اورم د مليار نګه غـــزل کې
د ليلي په چـــاودې زړه به راټوکـــيږي ګـلان يو يو

د زمري ۱۱مه ۱۳۸۲ لمريز لېږديز کال



# غزل

نو څه به وو که مې مو ښکاره لپو کې خوړلای
د نرمو شونډو سر مو په چکچکو کې خوړلای

دربار کې به دې څه کم وای که ټول عمر ماشوم وای
روزي مو د چیندوړي په ټوپکو کې خوړلای

هغه د سپوږمۍ شپې دنګه کوچۍ خړه کیږدۍ وای
څه شګې څه لشکې مو سوکړکو کې خوړلای

ارمان که رښتیا سترګو یار په هرڅه کې لیدلای
دیدن به مو په تشو او په ډکو کې خوړلای

واه څنګه به وو چېرته که ځواني مو وړکتوب وای
نیني او شنه ممیز مو اکو بکو کې خوړلای

د یار څنګ او لونګ دې وای ملنګ دې وای په نره
شړومبې مو په ختېنو اوب غړکو کې خوړلای

قسم دی که خاطر دې د روانو اوښکو نه وو
بارخو مې درنه ټول ګلې مچکو کې خوړلای

د مړينې کـــور به رنگ وو څــوک به بوره کوندۀ نه وه
ژوندون که د مرګي ســـــر په مردکو کـــــې خوړلای
د زمري ۱۵ مه ۱۳۸۲ لمريز لېږديز کال



# ځواني

یوه هېره هیله مې د زړه په تل کې
ژاړي سلګۍ وهي عرضونه لري
ها تېره سوې کیسه بیا په ذهن
خړه کیږدی غوړوي
هغه نغمه چې زما په بند کې وه او زه يې پیروم
هاغه چې کله به يې د ناز په ګوتو
تانده سندره د ځوانۍ بلله
بیا تخنوي زما د خیال ورغوی
او د غزل کاکل ته ول ورکوي
ښکاري زړښت کې برخې ځل وهلی
نه چې د ښکلو خدای د چا نذر کې
یوه چټه دنګه غنمرنګه جینۍ
دې د لونګ ملنګ ته
دې د سندرو تال ته
دې تږي جام ته دې نګه سلام ته
د سترګو رپ کې ورکړي
له کومه بیا ها سرګردانه سیوری
ها تت انځور لکه د چرسو لوګی
رانه تاویږي ما په غېږ کې نیسي
ورو مې د وریځو په وزر کینوي
او په رڼو سترګو ها مات خوبونه

راباندې وينې خو قسم دی پيره
کله چې دوی وينم نظر مې خړ سي
لکه غريب چې خپل ماشوم ته پړ سي
قسم دی دوی نه مې نظر شرميږي
د هيلو ښکلې مېلې
هغو رازونو چې خمارو سترګو
د ښو څوکو کې په ناز لوبول
زما په سترګو کې يادونه شنه کړل
د ورېمې لاس زما پر تړې نظر
د بېخودۍ د پريښانۍ ورغوی ورو تېر کړ
د زړه کړکۍ يې راته پرانستله
نو ځکه مينه نا بللې راغله
او د ځوانۍ مستې يې
زما په غزل کې ځانګې ځانګې کړله
هغه رنګينې زمانې ها ترانې شنې سولې
توري غوټۍ وو بيا ګلونه سول اوس شرنګ زيږوي
خو هئ ارمان يوازې ياد پاتې دی
د هغې مستې چې به دې شرنګ ته
نګه شرنګې نګه نغمه سوه باد به راوستله
زما پر سر به يې کيږدۍ د باران
د نرګس عطر کې مينځلې راوړه
هغه خوښي لوټ سوې
خو يو برباد زړه يو فرياد پاتې دی

زما ژوند چېرې وو
او چېرې راغی
د ځوانۍ پايله څه ترخه ده پيره ! ! !

د زمري ۱۲مه ۱۳۸۲ لمريز لېږديز کال



# غزل

له پانګو نه راجـــــوړه د باران کـــیږدې ته ژاړي
کوچۍ مینې قســـم نن مې نوا شـــپېلۍ ته ژاړي

ته وایې ښـــا پېرۍ باندې باران په شـــېبو اوري
څولۍ ورته نیولې ده اســـمان سپوږمۍ ته ژاړي

غزل غـــزل خـــیال مې بیا د زلفو ول کې زانګي
د بل منصـــور بدلـــه بیا د دار رســـۍ ته ژاړي

په تشه خندا لمانځي وخت سلګۍ سلګۍ وطن مې
همدا به یې، بلبل که د ګل ویر ګلۍ ته ژاړي

ســـپېره مېره کـــودړې د وحدت د منګي شمېرې
نتلی زړه د قـــام مې د پښـــتو لنډۍ ته ژاړي

روانې جـــنازې دي د نښــــترو او د لمنځـــو
په غم د رنګې ځالـــې توتکـــۍ سیسۍ ته ژاړي

پلازمېنه د ښایست یې، مخ یې سرو وربځو نیولی
چا شونډې ترې څکلي دي پېزوان نتکۍ ته ژاړي

غزله د ملـــيار غشی سه پاس اسمان سوری کـړه
ترخـــو به للمې دښـــــتې د اوبو ابی ته ژاړي

د زمري ۱۸مه ۱۳۸۲ لمريز لېږدیز کال



# غزل

رندانو کــــه په مـــېنه زمورې اور ولـــــګاه
شــــــېخانو دا بل ســـوی اور څه نور ولګاوه

ایله ښـــایست پوره زما د زړه د تاج محل شـــو
له کله مې چې یاره ســــــــتا انځور ولګـــاوه

منم د نن واده به دې ښـــــایستو کې پوره نه سي
خو بیا دې پدې غلي محفل کې شـــور ولګاوه

جانانه ما کو څه ســتا په سجدو سجدو کړه ولې
نن ځکـــه زهد دلــته کې خپل کور ولګـــاوه

راغلي نابللي به پرتوګ په غـــــاړه یو ســــــي
د ښـــکلو ســـخاوت که لږ څـــه زور ولګاوه

صبا به یې دا خلک ټول د ګل په مرګي نیســـي
بې علمه شېخ چـــړي په ملـــیار تور ولګـاوه

د زمري ۱۸مه ۱۳۸۲ لمریز لېږدیز کال

# رښتيا خوب

څنګه ړنګه بنګه بېګا خوب کې وې راغلـــــې
خدای دې راته ســـاته او دښمن دې ومره ګُلې

ټولګه دښـــايست دې وه او سرې سترګې د ګبر
زه دې ســــــپېلنی وم خو نظـــر رانه وهـــلې

جوړه زلـــزله وه زړه کې شور وو د يادونو
ترمې اوښــکې ستا يې پاس په بام ورڅڅېدلې

درمند د سکروټو وو شنې لمنځې او نښتر دې
اور ورته څادر وو ســرو لمبو چينې ځبېښلې

درز غپ د مرګـي وو دوړو څښې غورځــــولې
کـــډې د لـــــونګو او د زاڼو بارېـــدلې

ونو پاس آســـمان ته وچې څانګې وې نيولې
پېڅکي د ټيکريو پکــــــې پاڼې رپېدلې

غوځ ګلاب ســــرونه وو تنې تلې ړنګې بنګې
دې" رقص مرده " ته بيا بګـــــوې نڅېدلـــې

شــــپول کې د ليوانو ، ســورلنډيو اتڼ جوړ وو
پرې تي بورې ميږې ترېنه ورو ورو ځــښېدلې

ځومره سترې خوب وو ځـنګه توره ترورمۍ وه
خدای قسم ســبا مې آن ترې وربغې تښـتېدلې

ځو چې داړې داړې ازغي اوښ د مرګ ونخوري
مړې نه سي کړزې تېره شــــپه چې ګډېدلــې

ځــــو چې د قصاب لمن محراب نه ښکته نه سي
ګل نه سي ها وينې چې له خـــــال دې بهېدلې

***

لپه د دعــا کې به ماشــــوم ارمان ســوځيږي
بيا به ترورمۍ يې او بګـــــوې به لنګـــيږي

دا د وېرې خوب به دې نيمګـړې ښکلا سـوځي
دا د اور پړونی به دې شـور او نوا ســـوځي

د زمري ۲۴مه ۱۳۸۲ لمريز لېږديز کال

# وخت

کنډا سې ژامې غـــــرونه زړونه کاڼو ســـــره خوري
شـــېخان د زمانې کتاب له پاڼو ســــــره خـــوري

چې یو ځای روي شونډې او پېزوان خـــوله ګرمه نه ده
تل خـــــــواره ورېږدکي له موماڼو ســــــره خـــوري

خــــزه کې د بڼو بتۍ د ســــــترګو تربنه ســــاته
د وخت روی نظــــر څپې له زاڼو ســــــره خـــوري



# اوږه

ابکه پلاره ډېر مې ښه یادیږي
هغه سپېره هغه بېخونده سهار
چې دې په خوب کې په تندي ښکل کړم
او ویل دې ګوندې نن ددې له مخه
خدای مو په لږ څه اوږو و ارزوي
ویښه وم ځان مې هسې خوب کې نیوه
څو مې د کور له وره نه خرپ واوریده
ته رانه لاړلې بیا رانغللې
خدای خبر
چېرته به یې
دا نن یې شپاړس کاله سم پوره سول
خو ستا د چاودو شونډو
ستا د تېرو برېتونو
احساس په سوې تټنډه بر ګرځوم
پدغه هیله چې به خرپ د وره سي
ستا د پېښو ښکالو به
سکنې ماښام کې زما د خیال پیڅکي
په چاودو ګوتو
په تودو لاسونو
د ماشومتوب څلې کې بیا وتړي
***

دې ګونګوسو پلاره اوړه اوړه کړم
چې ګوندې چا به يې
بټۍ کې سوی
يا به دې سر کې
چا يې ميخ ټومبلی
چېرته چې مابه په ماشومو ګوتو
ستا د پکړۍ ول کې څونډۍ ټومبلو
آه، څنګه زړونه دي له څه نه جوړ دي
دومره هم نه ويني چې زما تندي کې
ستا د زيړو شونډو کرلی زړی
لا د باران په تمه
لا د نياو په هيله
لا ستا د پښو د خوږ ښکالو په ارمان
ستا د راتګ زيری په زړه کې روزي
خدای دې دا ورانې ګونګوسې دروغ کړي
خدای دې بيا راوله د زړه سپرليه
زما ځوربدلې کړېدلې پلاره
لور دې لا سترګې په ارمان غړوي

د وږي ۱۳مه ۱۳۸۲ کال

# مرګیه

هر څـــو که خوبونه په مړوند کـــوو
مرګه آخر ستـــا لپاره ژوند کـــوو

ګـوره چې بې ډول او سُرني رانه سې
یاره هرکلـــی دې ډېر په خوند کـــوو

موږ ته له ښو نه هم نږدې ښـــــکارې
هره شېبه عمر ســـــتا په بنـــد کوو

خوږ اتک یې خامـــخا درتګ لـرو
خبر دی که نن مـــبنه په ابلبند کـــوو

ګوره اوس ایله د ژوندون چـل راغی
لږتم ســـــه بیا هرڅه ستا په اند کوو

غـــبږ به دې قسم په نغمو ډکه کـــړو
موږه شـاعران یو ښـــه چلند کـــوو

د وږي ۲۸مه ۱۳۸۲ لمریز لېږدیز کال

# غزل

پلی وې راغلـــی هسې نه چې پلی پاتې ســـــې
خوله واخله ناره، ناره سه نه چې غلـــی پاتې ســې

هر پرهر دې توری د غـــزل دی ســـمه ټولـګه یې
زړه ! خدای نه دې غواړم په ښو ویشتلی پاتې سې

می باندې اودس کـــړه اقتدا د خــــال امام پسې
دلته کې که غواړې چې رښتیا ښاغلی پاتې ســـې

دا چې دې د ښـــکلو مخ ته تل سپېلنی ګـــرځوم
بس قســم دی غواړم چې ســوچه او ولی پاتې سې

ګوره ښـــکر به مات کـړې وخته ماته اړم کېږه مـــه
لـــږ دی ترهګر غـــوندې له بخته تللی پاتې ســـې

خدای دې شـــېخه تا په تشو تشو توبو موړ نکړي
زړه غـــوندې مې تل له لوږې بوټ وتلی پاتې سې

زه به یم او شـــونډې ما ته پیر دغه دعـــا کـړې
ځه تل د پېزوان غـوندې په خـــوله تړلی پاتې سې

روې ورک سې لوڅ غزل دې سترګو کې بوسې کړي
ببخ دې شين سه ونه مرې رسوا نتلی، پاتې سې

خوار مه سې ملــــياره بس مين يې پاړوګر نه يې
شـــپه نه يوه شپه به په کوم مار چيچلی پاتې ســـې

د تلې ۱۲مه ۱۳۸۲ لمريز لېږديز کال



# غزل

ستـــرګې په ستـــرګو سولې ستـــرګې مې په لار پاتې دي
بـــس لـــه هغې شېبــې مې هــيلې پاس پـه دار پاتې دي

بېـــګا کوم تت ارمـــان يې تل کې سترګـــــکو نه وهل
لا د زړګي کابل کې څـــــه نښې د ښـــــــار پاتې دي

ســـــــو ښېــراوو د ظالم ماڼۍ ويجـــاړه نکړه
پاس د آســـــــمان په لور منګلې د څـــــنار پاتې دي

ښـــکاري د سرو شونډو په راکــــــړه څه جګړه سوې ده
د برګـــــــودر په غـــــــاړه څو دانې د هار پاتې دي

ورېځو راښـــــکته سئ راغـه باندې ښکاريان راڼده کړئ
څـــــو مات وزرې زاڼې دلـــــته لـــه کـــــتار پاتې دي

آن مــــــو د ونو وچو ګوتو کې ريښــــــکۍ رپـيږي
وطــــــن زيارت ســــو ښکاري لا مرګي په وار پاتې دي

لـــــږ ده سنــدرې به راشنې سي او سلـــګۍ به ومـــري
دلــــــته لا زړې د غــــــزلو له ملـــــــيار پاتې دي

د لړم لومړۍ نېټه ۱۳۸۲ کال

# غزل

د ښو ټال کې مې د اوښکو ماشوم مړ ګرځوم
و ايه اشنا څو به ستا مينه کې مخ خړ ګرځوم

دوخت روڼ مخو ته څوک هسې ګوله نه ورکوي
خو زه سپين سترګی په پردۍ کټوو پړ ګرځوم

ارمان تر اوسه چا جامه د عمل ورنګړله
ډله په ډله يو څو توري لوڅ لغړ ګرځوم

د قصاب لور ده ما په تشه خندا نه ارزوي
څو که دودی ورته هر پل کې د انګړ ګرځوم

د زړه څنار مې دې سودا لکه ويني خوړلی
دا په څلور کتابو پړ به څنګه وړ ګرځوم

د حسن خدايه بس په خپل ځايګي يې وارزوه
څو به سپيره مېره د ښکلي پښتو ګړ ګرځوم

د لړم اتمه ۱۳۸۲ کال

# غزل

قسم دی چې د تندې ماتولو چل مې زده دی
که جام نه یې په لپه کې د څښلو چل مې زده دی

ملګرې شېخه ستا کړو سجدو ته مې سلام دی
د ښکلو د روژو د ماتولو چل مې زده دی

په سر مې خُم رامات کړه ساقي ما په بنګړو وله
څه روی نه یم یو دا د سکونډلو چل مې زده دی

د حسن ذکات وېش له دې ما ترې هم دربوله
که نور نه یې په سترګو د څټلو چل مې زده دی

دې سپینو تورو څړیکو کې مې درد دومره اخته سو
والله د ټولو ولو او ناولو چل مې زده دی

څو وري د ښکلو تورو د ښایست ورشو کې پیایم
خو نه وایم شاعر یم د غزلو چل مې زده دی

ملیار یم ما په زور او زېر د ګل مخ ختم کړی
عامي نه یم د هرڅه د لوستلو چل مې زده دی

د لړم ۲۲مه ۱۳۸۲ لمریز لېږدیز کال

# دا پانه دا ثنار

ساقي تنده مې پا ښلې د خـــــــــماره پورې ځي
يو ســــــــر لــــــرم چې مينه کې تر داره پورې ځي

چينې لا مـــــرورې دي له غـــــرو نه را کـــــوزېږي
وبريږي خــــــږې نشي ځــــو تر ښـــــاره پورې ځي

خير دا ځلې کـــــــــه پاتې د ښکلا له ذکات وبش يم
ســــــپېږې شـــونډې مې دا دی تر بلواره پورې ځي

ورځـــــــار شم لا د زانو اتڼ مست وهي څرخـــونه
کـــــــه څــه د ګولۍ ډز يې تر کـــــتاره پورې ځي

ټپي شــــــو خو ټپ نشو سندربول فطرت ته ګـــــــوره
دبرې مـــــــــو له لـــــــنډۍ تر يکه زاره پورې ځي

که څه هم ډبرې غورځې پرځې ډبرې سترې شـــــــته دي
آخـــــــــر مـــــــو دا مــزل ښار د ثناره پورې ځي

زه ګــــــــرم نه يم د ټنډې کرښې داسې دي راغـــلي
چې هـــــــــره لاره ونيسم تر ياره پـــــــورې ځي

ملــــــــيارہ پام د خوب کيږدۍ په ســـترګو خوره نشي
د دنګې کوچۍ کډه تر ســــــــــــــــهاره پـورې ځي

د لړم ۲۷ مه ۱۳۸۲ لمريز لېږديز کال



# غزل

څه یې کړم د دې وخت مسلمان او کفار څه وايي
خدايه پدې پوه مې کړه چې سترګو کې يار څه وايي

خير د کومې دنګي په کړۍ زلفو مې وتړه
دا راز راښکاره کړه چې منصور لره دار څه وايي

ما ته يې د سُر او تال په ژبه دنيا پرانيسته
خوار ملا ته وو ايه رباب او سِتار څه وايي

زه شاعر يم ما ته د ګلپاڼو سبق ښه راځي
خدای که به پرې غوږ يم چې د شوبلو کتار څه وايي

دا د کوم ناولي د نادودو پېټې ګرځوي
سترې اورمېږونه د نښتر او څنار څه وايي

سږ به کومه سپينه ابۍ ورېځ دلته کې لنګه سي؟
کلي، غرونه څه وايي، دا دوړې د ښار څه وايي

وړي د غنم پسې مې زړه لکه غنم چوي
کال ته به بيا وګورو چې کر د کوکنار څه وايي

زړه لکه ســـــاده مومن نږدې ده چې لار ورکـه کړي
دلته مُــنار څـــه وايي او هلته مُنار څـــــــه وايي

دا د لونګ ډلـــــــــه به په کـــــومه ډزه وانوړي؟
ســــــترې مزل څه وايي، کاروان ته مو لار څه وايي

سته دي څو تپې زانې څو مات بنګړي پو هيږي چې
خوار، په زړه ويشتلی، او نتلی ملـــــيار څه وايي

د لړم ۲۹مه ۱۳۸۲ لمريز لبږد يز کال



# بنجاره

راځئ چې نن آسمان ولو په ستورو
سبا چې څه پېښيږي بيا به ګورو

د لمر لمن کې وکړو سندرې
سينګار کړو کاينات په غزل تورو

چاپېره له سپوږمۍ برجونه رنګ کړو
د ځمکې په مخ واک واخلو له سيورو

باران باران ملګرو وږمو خويندو
راځئ چې نور په سرو سکروټو اورو

دا يو کلی د نيا کړو رښتيا کلی
شپېلۍ کړو بريالۍ پر سپکو سپورو

نکريزې د ټوپک په ځای وربار کړو
ځئ نوم د بنجاره واخلو له نورو

يو شين ښار د انسان په نوم آباد کړو
بس رنګ کړو کرښه وېش د سپينو تورو

د کب دوهمه ۱۳۸۲ کال

# پښتو

د زړه په سـر مې نا سـته یې خبرو کې راځـې
غـزل سې نګه سُـر سې په سـندرو کې راځې

آغلـې په فطـرت د توتکۍ له وزره ځاځـې
چې وخت یې سې سرلیک د زورورو کې راځـې

د مینې د آیت غـوندې به ولـې ولې نه یـې
له هسکه د نګو ځانګو د ښـترو کې راځـې

نغـمه د ملکـوت یې خوږ تکبیر یې د بلال
د شـاتو د مچـیو په وزرو کې راځـې

چـو پړ ته به دې ولې ګـونځې نه وهي سـرونه
قربان دې سـم د سـرو زرو په زغـرو کې راځې

په مـینه نګه مینه یې حـیا باندې پسـوللې
په ننګ د تورې پړق یې په لښـکرو کې راځـې

ښایست دې د درنو نرخونو ناز پلورې پر سـیالو
خـوږې، غرنۍ، دنګې په ګورګورو کې راځې

زيړه، نګه، شډل، ســـپېڅلي توري لرې زړه کې
د پټو خزانو په شـــــــمله ورو کې راځــــې

نږدې دی برم او پت به دې د ښـــکلې مينې پالو
بس خــــير دی يو څو ورځې مرورو کې راځـــې

د کب شپږمه ۱۳۸۲ کال



**ختښکی** (ګران لیوال ته د (پینځه دیرش) آزاد شعر په ځواب کې ډالۍ)

خیر دی زړه مات نکړې لېواله یاره
له ډېرو ډېرو ښه یې
زما نه خبر سه چې مې زړه لکه غنم چاودلی
مور وایې
زویه چې د پلار دې پچه وختله
نو ته هماغه کال
ها سوړ ژمي کې
د لوریینو خدای ډالۍ کړې ماته
پلار نه مې کال د عسکرۍ هېر وو
ویل به یې ښه مې دي په یاد چې په هغه اوړي کې
زموږ پالېز په خرواړونو ختښکي کړي وو
ته ختښکی هماغه کال ما ته خاوند راکړلې
ما ګوره !
چې مې کلیزه را معلومه نه ده
ته ښه یې لږ تر لږه تمه لرې
دومره خو یې
چې د کلیزې په بانه چا نه ګیله وکوې
وایه اشنا !
زه ختښکۍ،
چا ته ګرېوان څیرې کړم ؟

د کب ۲۰ - ۱۳۸۲ کال - کابل

# شډله ياره

شـــډله ياره وايه څـــــو راپسې بم ګرځـــــوې
د خپل د کلي د ماشـــــوم له خولې نه مم ګرځـوې

قســـم لمبه به يې ســـتا د ږيرې تبرک وســيځي
زمـــا په ســــترګو ولو ډز خــپله قلم ګرځـــــوې

شـېخه ما ځکه ته پرې ايښی يې او خال پسې ځـم
په خـــوله الله وايې ، لستوڼي کې صنم ګرځـــوې

خدايزده چې کومه ټينګه غيرت مې در ياده سي چې
زمــــا تر مزاره لا رســـــيږې نه قدم ګرځـــــوې

ســتا د ښــايست زما د غـــزل ورشو به شاړه نه سي
څـــــو چـــې د تورو سترګو للمه کې دې نم ګرځوې

له اســـــويلي نه دې د وريت ارمان لوګی راوځـــي
ملياره خدايزده چـــې د کومې ميرې غم ګرځـــوې

د کب ۲۵مه ۱۳۸۲ کال – کابل

# غزل

وایـــه پـــه څـــــه د دریانو شـــه لالي لاس رپیږي
ځکه چې ســـته دي څو شملې هلته کې پاس رپیږي

ښـــکلې د حسن ســمندر کې دې څه کوډې ستـه دي
چـــې یې له وېـــرې نه لینګي د هر غـــواص رپیږي

تندې به ماتې ســـي جانانه وچـــکالي به ومـــري
خیر دی که لا مو سیند سراب دی پرې براس رپیږي

دا دې د ســـپینو غاښو ځل دی په خـوږه خندا کې
کـــه د ګـــلابو په هېنداره کـــې الماس رپیږي

ګـوره دا شـــونډې غنمرنګې لـــړ په وار راکـوه
د دې درنـــو وریو لاندې د زړه آس رپـــیـــږي

د غبرګولي ۱۰مه ۱۳۸۲ لمریز لېږدیز کال

# د مینې لوست

مورجانې بیا یې له ټولګي وویستم
بیا مې ښوونکې،
ټولګیوالو،
آن ها تورې تختې،
راپورې وخندلې
***

څومره ښه شپه وه
په سبا یې چې ښوونځي ته تللم
تا وېلې شکر خدایه زوی مې مکتبی سو راته
سبا به څنګه ښه ښکارېږي
چې ښوونځي ته درومې
زما خیال ته به
هغه اشنا انځور راغی
چې مې له تېر ژمې
تنکي ذهن کې پټ ساته
لکه کوتره د سخي د زیارت تکه سپینه
لکه زما د الفبې سپپاره پاکه درنه
زموږ ښوونکې د غزلو ښایسته ښاپېرۍ
د ټولګي پاس سر کې ولاړه

مورِ ته مینه ښیي
مورِ ته الله
مورِ ته انسان
مورِ ته افغان راښیي
افغانستان راښیي
***

مورِ د برښنا په مزي ناستو توتکیو په شان
دغه د مینې سپپاره پسې په شرنګ وایو
د ښوونځي له پاسه شنه اسمان کې
د خدای لېږلې څو ملکې زمورِ د لوستورو ته
سپینو وزرونو کې د حق د نامه رنګ ورکوي
څو دغه توري ټول رانه ستوري سي
او د تیارو لمنه وڅیري د نور په غشو
ترې د رڼا کمکي تنکي یرغمل ټول خوشې کړي
وطن رڼا رڼا سي
***

مورې خبره یې؟
له زړه مې تورې وینې څاڅي
چا پکې سته اشنا انځور راته په کاڼو ویشتی
زما ټولګی،
زما ښوونځی،

زما ښوونکې مړه ده
له شنه آسمانه یې د خدای ملکو کډه کړې
تیاره لا ماته نه ده
او د رڼا تنکي کمکي بچوڼي
د تروږمۍ سمڅو کې تت پراته دي
***

ما ویل چې څنګه تا ویلي وو
هغه به وکړم
او د ښوونکې پسې سم به
نوی لوست تېر کړم
ما خو ګڼل چې د غزل ښاپېرۍ لوست راکړی
زما په هډ هډ کې څو داسې ښه ویېونه سته دي
چې د ښکلاوو د خاوند د نوم په سر پیلیږي
سم به ښوونکې پسې ووایم
الله، انسان،
افغان او ګران افغانستان،
بیا به مې ونازوي
خو نه پوهېږم ما نه یې څه وپوښتل
رنې، رنې مې ور کتلې هېڅ مې ونه ویل
دوه، درې، څلور ځل یې هغه خبره وکړه راته
خو زه پرې پوه نه سوم
لاس کې قلم یې زما پر مخ وویشته

ما ویل ښوونکې صایب، سبق مې زده دی
له مټ یو ونیولم،
غوږ یې را تاو کړ،
او کوم څه یې وویل
***

مورجانې ستا د هغې شپې شکرانې یادې راته
لکه چې دلته شکرانې په سزاګانو اوړي
زه یې پدې نن له ټولګي وویستم
چې د ښوونکې، ژبه نه راتلله
مورجانې ستا په رازده ژبه ولې لوست نه سته ؟
مورې ښوونکې خو ښوونکې ده هر څه به ورځي؟
خو ولې زما په خبره پوه نه سوه؟
زه یې له مټ نه رانیولی له ټولګي وویستم
ما ویل خیال کې مې راکړی لوست به تېر کړم ورته
الله، انسان، افغان او ګران افغانستان به وایم
ورته به خپل زړه کې راجوړ د ښیښو ښار ښکاره کړم
خو مورې ، ګرانې مورکۍ
مخکې تر دې چې خوله مې خلاصه کړم، کوم څه یې وویل
او ورسره مې څو همزولو ټولګیوالو په کړس
سپکه خندا وکړله
هوکې مورکۍ، هغه خبره چې ښوونکې وکړه
بس لکه کاڼی یې زما د ښیښو ښار ړنګ کړ

(اوغان غول ) باندې يې پوه سوم نور مې نه ياديږي
ځکه اوغان ته څه نږدې شي مې په ذهن کې وو
ما خو افغان، افغانستان، ختېه کې نغښتي لرل
ځکه همدومره پوه سوم
هغوی زما د مينې لوست ته سپکاوی وکاوه
نو مې راکړي کتابونه راته ډېر درانه سول
لکه د جبر پيټی يې زما پر اوږو زور و اچوه
قسم نږدې وه نری ملا ځنې مې کړس وباسي
نور ستا خوږې ژبې ته پړ ښه نه يم
ځکه مې داسې پټيېلې مورې
چې دا د جبر پېټی
په تنکو سترو اوږو نه ګرځوم
خو ستا ارمان پوره کوم مورې
ستا شکرانې د مکتبي زوی به بېځايه نه ځي
ماته هغه د مينې لوست بس دی
زه به په دې څلورو
الله، انسان،
افغان او ګران افغانستان يادوم
د وخت اورمېږ مات کړم
او پاتې لوست به ستا له ژبې وايم
ستا له ښوونځي به بريالی ووځم
بيا به مې ته
ټولو سيالانو ته

په ګوته نښيې
او په خواږه غږ په خوږه ژبه به داسې وايې:
ها چې الله، انسان، افغان، افغانستان وايي
هغه زما زوی دی
هغه زما د ژبې
هغه زما د مينې
هغه زما د پېرزوينې له ښوونځي وتلی
هغه به هېڅکله څوک مات نکړي
ځکه هغه زما ارمان ته په درنه کتلي
هغه زما په ژبه لوست کړی دی
دا مکتبي دا دنګ څنار زما د لاس نښه ده

د غبرګولي ۱۰مه ۱۳۸۲ لمريز کال







ملیار حکمت الله نومېږم. په کال ۱۳۴۵ کې مې د کابل په ښار کې د رحمت الله کاکړ په کورنۍ کې سترګې نړۍ ته پرانستلې. لومړنۍ ـ منځنۍ او لوړې زده کړې مې د کابل په ښار کې بشپړې کړې دي. د پښتو ادب د نګه شعر له یون سره له کال ۱۳۷۰ څخه راپدېخوا ملګری یم. لومړنۍ بشپړه شعري ټولګه مې د خپراوي په کانې د ښکلې کېدلو څخه تر مخه د طالبانو د راپرځېدو وروسته دغرو خوراک شوه. لنډو کیسو لیکل مې له ۱۳۷۷ څخه راپدېخوا پیل کړې. او ایله مې دوه لنډې کیسې لیکلې دي چې د داستانونو په مجلهٔ کې خپرې شوې دي. لومړنۍ شعري ټولګه مې دادۍ ستاسو مخې ته اېښې.

ټولګه مې ولولئ او که چېرې ستاسو د نظر وړ وه نو خپل درانه نظرونه په لاندې پته راولېږئ.

hmalyar@yahoo.com

ډېره مننه !